

# کندهار



د کندهار په باغ پل کښې د میلمه والو استوګنځی د پسرلی په راتګ سره د مربوطو مقاماتو
پاملرنې ته اړتیا لري

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي موسسه
د مسئول مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)
مهتمم: عبدالکریم طالب

کندهار
میاشتنۍ خپرونه
ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي
اداره: د شهیدانو واټ
د تأسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال لسمه گڼه
پرله پسې گڼه ۱۳۶

کالنۍ بیه
په کندهار کې [۲۸] افغانۍ
د هیواد په داخل کې [۳۲] د
په د باندنیو هیوادو کې یو ډالر

مرغومی میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

---

## د دې گڼې مضامین

# زموږ شته‌منه ډله باید صناعتي او تولیدي فعالیتونو ته ملاوتړي

په اوسني عصر کښې چې د تخنیک او ماشین په منځ ته راتللو سره د صنعت په نړۍ کښې ستر انقلاب جوړ او د سره اې د انسانانو د ژوند بڼه وا ړوله او نړۍ ته وال اې د مترقي او هوساژوند څخه برخوردار نه کړل نو

د انسانانو توجه او پاملرنه د صنعت پر اختیا ته و او وښتله او حتی لاسي صنایعو ماشیني شکل غوره کړ او د وړو او لویو دستګاوو او فابریکو په کار لویدلو سره صناعتي

او تولیدي فعالیتونه پر مخ ولاړل او اوس د هغه په برکت د انسانانو ډیرات مشکلات حل شوي او د ژوند بهترین وسایل په لاس کښې لري.

اوس د ټولو نړیوالو هڅه او کوښښ دادی چې د خپلو خلکو د بیکارۍ مخه ونیسي خپل او مه مواد د صناعتي فعالیتونو د لارې د اړول په کار واچوي چې نسبت دې ته چې خارجي هیوادونو ته اې په کښته بیه ولیږي د ملي صنایعو او تولیداتو د تقویې او انکشاف د لارې او خارجي هیوادونو ته د استولو له کبله زیاته ګټه وکړي او خپله اسعادي پانګه پیاوړې کړي.

زموږ حکومت چې د هیواد د انکشاف او پر مختګ په لار کښې ډیر کوښښ او فعالیت کوي نو ئې د دریم پنځه کلن پلان پر مخ بیولو کښې تخنیک او صنعت ته زیاته توجه اړولې او په هیواد کښې صناعتي فعالیتونو

ته زمینه مساعده کړې او هغو پانګه لرونکو ته ئې د خارجي اسعارو په برابرولو مرسته کړې او نورې آسانتیاوې ورته برابرې کړي دي چې غواړي په خپله

صناعتي فعالیتونه وکړي او تولیدي چارې پر مخ بوزي.

نن زموږ د هیواد په هر کوټ کښې تولیدي او صناعتي فعالیتونو ته زمینه زیاته مساعده او هیوادوال د اراز

(۱۵ مخ)

خدمتونو ته زیاته اړتیا لري د اځکه د دغې لارې څخه زموږ مخ په انکشاف هیواد چټک پرمختګ کولای شي او د خلکو د ژوند مادي سویه هم لوړیږي او که موږ

په خپل هیواد کښې د دغه صناعتي فعالیتونو ته زیاته وده او انکشاف ورکړو او د اډرز مالونو او شیانو د تولیدولو لپاره په خپل هیواد کښې فابریکې په کار

واچوو د نورو د اړتیا څخه وژغورو ملي صنایع مو تقویه کیږي او اقتصادیات مو له دغې لارې څخه پر مخ دروړي.

زموږ شته‌منه ډله باید نورو په دغه هکله بې پروا ئې او بې احتیاطي ونه کړي خپله پانګه د اوسني عصر د اړتیا سره سم او هیواد د عصري تحولاتو سره سم په داسې لار کښې په

کار واچوي چې ګټه ئې هم دوی او هم هیواد والو ته ورسیږي او د خپلې پانګې په اچولو سره قوانین ته لوی خدمت وکړي

باید هغوی خپله شته د صنعتي او تولیدي فعالیتونو د پراختیا په لار کښې په کار واچوي او ددې پر ځای چې لکس مالونه په راوړلو بوخت او یا داسې غیر ضروري

نورو وسایل هیواد ته راوړي او یا د وارداتي مالونو په تجارت بوخت وي باید صنعتي او تولیدي فعالیتونو ته ملاوتړي او هیوادوالو ته ستر خدمت وکړي.

موږ ته بوښکاري چې زموږ ځینې لوی سوداګر خپله پانګه د تجارتي سرایو نو جوړولو، ځمکو پیرانیولو او د اړول نورو چارو ته وقفوي او یا خپلې پیسې په

تجربو او کورونو کښې ساتي او حال دا چې که په هغو سره هیواد ته ودې صنعتي دستګاوې او یا لوړې فابریکې راوړي او خپله پانګه په دغه څه لار کښې بنده کړي.

(نور په ۴ مخ کښې)

د احمد راشد لیکنه:

# د امنیت شورا او د هغې فعالیتو ته یوه کتنه

## ډاکتر کورټ والډهایم د امنیت د شورا د څلرمې دورې سرمنشي په کار شروع وکړه

د ملګرو ملتو جهاني موسسه د ۱۹۴۵ کال د اکتوبر په ۲۴ نیټه منځ ته راغله د دغې موسسې منشور سربیره پر نورو هدفونو باندې د سولې او امنیت ساتلو هدف د دغې موسسې د مهمو او لویو کارونو څخه بولي.

په ملګرو ملتو کې د امنیت شورا د خپل قوي فعالیتو ته او اقدامات سرته د سولې د تهدیدونو د مخ نیوې او له منځه وړلو په منظور او د تیري کوونکو او داسې نورو اعمالو د شنډولو په غرض چه د امنیت د پاره خطرناک دي شروع کیږي.

په بشري ټولنه کې هر څوک د سولې او امنیت سره ډیره علاقه لري او د هر چا هیله هم دا ده چه د سولې او امنیت په فضا کې ژوند وکړي.

نو څرنګه چه دغه لوی هدف ته د رسیدو د پاره د ملګرو ملتو په موسسه کې د امنیت شورا په ډیره بیړه سره ډیر او زحمت کاږي

له دې امله غواړم چه د ګرانو او محترمو لوستونکو د پاره د امنیت د شورا په باب څه ناڅه رڼا واندې کړم:

د امنیت شورا د هغه موسسه ده چه دغه دولتونه له خوا په کلي توګه د سولې ساتلو مسئوله ده.

د شورا (۱۵) غړي لري چه او د دې کارونو د اجرا کولو په وخت کې د ټولو غړو دولتونو په موافقه یې کړې ده چه د ټولو غړي شورا تصمیمونه په عملي کولو اطاعت کې کوي.

د امنیت شورا (۵) دایمي او (۱۰) انتخابي غړي لري چه دایمي غړي یې دا دول دي: د چین جمهوریت، فرانسه، شوروي اتحاد، انګلستان او د امریکا متحده ایالتونه دي.

د امنیت د شورا لس غیر دایمي غړي د عمومي ټولنې له خوا د دوو کالو د پاره ټاکل کیږي ټاکل سوي غړي یې سي کولای چه د دوه کلنې دورې تر ختمیدو وروسته بیا انتخاب سي.

د دغه تعدیل په اثر چه د ۱۹۶۵ کال د اګست په میاشت کې د ملګرو ملتو په منشور کې راغی، د شورا د غړو شمیر ۱۵ ته ورزیات شو.

په ټولو برخو کې د تصمیم نیولو د پاره د امنیت شورا هر غړی یوه رایه لري.

بې له هغه مسئلو څخه چه د رایې اخستلو په طریقه پورې اړه لري، د دغو موافقو رایو په اکثریت د شورا پنځه دایمي غړو په شمول ضروري دي. او د پنځه دایمي غړو د موافقه په هر موضوع کې لازمي ده.

د امنیت شورا د غړو تر منځ د نظریو د توافق دستور د ټولو د موافقې او یاد (ویټو) د امتیاز په نامه یادیږي.

په عملي مواردو کې هغه مسئله چه د یوه دایمي غړي بواسطه ورکول کیږي، دا معنی لري چه نوموړی غړی له ویټو څخه کار اخستی دی. د امنیت د شورا هر غړی د موقتي غړو په ګډون

باید په هغو تصمیمونو کې چه د سولې په تامین پورې اړه لري او په خپله هغه موضوع کې طرف وي

او د رایې ورکولو څخه ډډه وکړي، د تصمیم په وخت کې د رایې ورکولو طریقه دا ده چه تصمیم د نهو غړو په اکثریت قبول کیږي.

څرنګه چه د بین المللي سولې تامین او ساتل دایمي پیداوار دی او آني فعالیت ته اړتیا لري.

تو د امنیت شورا په داسې ډول تأسیس شوې ده چې په دایمي توګه فعالیت کوي. د امنیت شورا په خپله اراده په هر ځای کې چې وغواړي غونډه جوړولای شي. د امنیت شورا حق لري چې هر هغه شخړه او وضعیت چې د دوو هیوادو ترمنځ په تصادم کولو سره پای ته رسیږي تر بحث لاندې ونیسي. د دا ډول شخړو او حالاتو د امنیت د شورا د غوراو توجه د پاره د عمومي ټولنې د غړو

دولتو په واسطه او یا د ځینو شرطونو لاندې یوه داسې دولت په واسطه چې د ملګرو ملتو غړی نه وي نوموړې شورا ته وړاندې کیدای سي.

د امنیت شورا حق لري چې د سولې د تأمین د وسایلو او طرېقو سپارښتنه وکړي او د ځینو مخصوصو شرطونو لاندې د اختلافو نو د حل د پاره شرطونه وټاکي. هر کله چې د بین المللي سولې ماتول

تهدید او یا تیری کونکی عمل منځ ته راسي د امنیت شورا کولای سي چې د عملي اقداماتو څخه د بین المللي سولې او سلامتیا د بیرته راګرځولو د پاره کار واخلي.

دا کار د مواصلاتو او مخابراتو، سیاسي او اقتصادي روابطو قطع

کولو ته، حتی که ضرورت ایجاب بوله هوایي ځمکني، او بحري قوي استعمال ته شامل دی.

د ملګرو ملتو د منشور د سره سم د ملګرو ملتو غړي مکلف دي چې د امنیت د شورا د غوښتنې په وخت کې د پیلو موافقتنامو په اثر نظامي قوه او

نور وسایل چې د نړیوالې سولې او امنیت د بیا راګرځولو د پاره لازم وي، د دغې شورا په اختیار کې ورکړي. خو تر اوسه پورې په دغه باب کومې

داسې موافقتنامې منځ ته نه دي راغلي.

د بې وسلې کولو کمیسیون چې د عمومي ټولنې په واسطه په ۱۹۵۲ کال کې تصویب سو چې باید د امنیت په شورا کې جوړ سي تر اوسه لا نه دی تأسیس سوی.

د ملګرو ملتو موسسه د خپل تأسیس له وخته څخه بیا تر اوسه پورې بریالۍ شوې ده چې د هیوادو ترمنځ ځینې نظامي نښتې د منځه یوسي او خبرو اترو له لیارې

---

## د نړ اوښکو

### ترمنځ توپیر

کله چې ښځه د اور د لګیت خاشه لګوي ځان ځني لیرې کې مګر نر د هغه ته ورنږدې کیږي.

کله چې ښځه خپلو نوکانو ته ګوري د لاس د ټول ظاهري قسمت ته نظر اچوي مګر نر یوازې ګوتې را پورته کوي چې د هغه نوکان وګوري.

کله چې ښځه وکم اطاق ته ننوزي د اطاق د ټول محتویاتو ته نظر اچوي ور وسته په هغه ځای کښیني لاکن نر لمړی پر ځای کښیني ور وسته د اطاق وا ثاثیه او محتویاتو ته نظر اچوي.

---

پای ته ورسوي. د مثال په توګه د فلسطین جګړه د دغې موسسې د سوله ایزو منځګړیتوب په واسطه بنده کړی سوه.

دغه رنګه په ۱۹۹٤ کې د اندونزیا او هالینډ ترمنځ نظامي نښته په بریالیتوب سره ختمه سوه.

د امنیت شورا د سپارښتنې په اثر په کوریا کې ډله ایز فضایي عملیات منځ ته راغلل. ملګرو ملتو د کوریا د جمهوریت په خلاف نظامي حملې په شا وهلې او د سولې د لیارې د کوریا د وحدت تأمین د ملګرو ملتو یو ستر هدف ؤ.

د سویز د کانال شخړې د ملګرو ملتو د قواو تأسیس په اثر حل شوې

او دغه قواوې هغه ځای ته د دې د پاره لیږل شوې وې چې په دغه ځای کې د سولې تأمین وکړي او هم د مصر د خاورې څخه د اسرائیلو، فرانسې او انګلستان موافقه د هغوی د عسکرو د را ایستلو په باب منځ ته راغله.

په ۱۹۸۵ کال کې د لبنان الي ګولي د هغو خبرو په اثر حل شوې چې په هغه کې د دغې موسسې یوې ډلې کتونکو ګډون درلود.

د امنیت شورا په ۱۹۶۰ کال کې د هند او پاکستان ترمنځ د کشمیر د موضوع او د دغو دواړو هیوادو ترمنځ د بین المللي سرحدونو په باب اخطار بند کړ او هم یې د لمړي حل د پاره په ۱۹٤۹ کال کې د کشمیر په موضوع کې مداخله وکړه او د دواړو هیوادو ترمنځ جګړې یې پای ته ورسوي.

## د امنیت د شورا سرمنشي یا سکرتر جنرال

په دې وروستیو کې چې د او تانت وظیفه سرته ورسیده او د اطریش د خارجه چارو وزیر ښاغلی کورټ والدهایم د هغه په ځای وټاکل شو نو ښه به نوي چه په دغه باب او د تیرو سرمنشیانو په هکله څه ناڅه ذکر کیږو.

د سکرتریت آمر چه یو سرمنشي دی د عمومي ټولنې د خوا د امنیت شورا د سپارښتنې په اثر ټاکل کیږي.

سرمنشي دا وظیفه لري چې هر هغه مسئله چې د ده په عقیده د نړیوالې سولې او امنیت تهدید وي د امنیت شورا ور ته متوجه کوي.

د ملګرو ملتو لمړی سرمنشي (تریګولي) د ناروې اوسیدونکی چې د ۱۹٤٦ کال د فرورۍ د میاشتې لمړۍ نیټه د پنځو کالو د پاره وټاکل شو او د خپلې دورې د پای ته رسیدو وروسته د یو کال د پاره ئې نور هم خپلې وظیفې ته دوام ورکړ. خو د ۱۹۵۲ کال د اپریل په لسمه نیټه یې د وظیفې څخه استعفی وکړه.

د ۱۹۵۳ کال د اپریل په (۱۰) نیټه «داګ همرشیولډ» چې د سویډن اوسیدونکی ؤ د پنځو کالو د پاره انتخاب او وټاکل شو. خو په ۱۹۵۸ کال کې د بلې پنځه کلنې دورې د پاره بیا انتخاب شو.

خو د الوتکې د راغورځیدو په اثر د ۱۹٦۱ کال د سپتمبر په ۱۷ نیټه مړ شو.

«او تانت» د برما نماینده د «همرشیولډ» د وظیفې د دورې تر ختمیدو پورې د سکرتر جنرال د کفیل په حیث وټاکل شو. د ۱۹٦۲ د نومبر په میاشت کې او تانت د سرمنشي په حیث د پنځو کالو د پاره وټاکل شو د ۱۹٦۲ د نومبر د میاشتې په دریمه نیټه یې کار پیل وکړ هر کله چې د او تانت پنځه کلنې دوره په ۱۹٦۷ کال پای ته ورسیده نو وروسته له هغه د دوهمې دورې د پاره بیا وټاکل شو او پنځه کاله نور یې د سرمنشي په حیث وظیفه سرته ورسوله خو هغه وو چې د دوهمې دورې وروسته او تانت د ناروغۍ له کبله د دغه مهمې وظیفې د سرته رسیدو څخه ډډه وکړه. له دې امله د امنیت شورا تر ډیرو وروسته د اطریش خارجه وزیر ډاکتر کورټ والدهایم د دغې وظیفې د پاره د څلورم منشي په حیث وټاکه.

د ملګرو ملتو د امنیت شورا په دغه باب د څو ځله ناکامیدو وروسته په پای کې بریالی شوه چې د ۱۱ موافقو رایو، مخالفې او ۳ مستنکفو رایو سره ډاکتر کورټ والدهایم د امنیت د شورا د سرمنشي په حیث وټاکي.

ډاکتر کورټ والدهایم د مرغومي په لسمه نیټه پخپل کار پیل وکړ. وګورو چې دی به د جهاني سولې او امنیت په لار کې څه اقدامات وکړي.

(د ۱ مخ پاتې)

## زمونږ پښتنه ملګره...

مادي او معنوي ګټې ئې زیاتې دي او د خلکو په زړه پورې بیت ګڼي او په خپله دغه وطندوستانه اقدام سره د خلکو د مشکلاتو په لیرې کولو کې لوی ګام اخلي.

د کندهار په لوی ولایت کې د صنایعو فعالیتونو څخه زیاته ګټه لاس ته راتلای شي او که زمونږ پښتانه کسان یو څه فداکاري او وطن دوستي ولري هغوی به خپل فعالیت په تولیدي او صناعتي سکتور کې متمرکز او په دغه لار کې خپل وس ونه سپموي.

(ایوبي)

## شکایت

څوک چې د خپل ژوند د مشکلاتو څخه شکایت کوي هغه په حقیقت کښې د خپلې کمزورۍ او د روح د ټیټوالي څرګندونه کوي.

## اری خصلتونه

بې وزلي چې خوشامند نه کوي او شتمن چې لوږی اوګرسنه لري، دا دواړه د لویو خصلتونو خاوندان دي

د غلام رسول ايوبزي ژباړه:                د خارجي منابعو نه:

# هغه اصول چې د هري اداري رئيس

## او موسسې بايد ډېر په رعايت وکړي

په دغه مقاله کښې به له هغو اصولو او ټکي يادوو چې په يوه اداره او موسسه کښې د رئيس يا مشر د مامورينو او همکارانو ترمنځ د صميمانه همکارۍ موجب کيږي او په نتيجه کښې د کار د ښه کيدو او پرمختګ سبب ګرځي .

بدې ځای کښې دا بيان هم کيږي چې د يوې ټولنې مشرتوب يا رياست څه ډول حاصليداي شي ؟

دا ځکه هيڅوک لومړی ځل دنيا ته د رئيس يا مشر په حيث نه دي راغلي .

هغو ناديو او څيړونو چې د خپلو همکارانو سره د سلوک او ګذارې کولو په لار کښې ګټورې لارې چارې ذده کړي وي د يوې ادارې ، موسسې او يا ټولنې مشرتوب ته رسيږي او ښه اداره هم کولای شي .

يو نامتو روح پيژندونکی وايي : په هره موسسه او يا اداره کښې مشرتوب ګټل بدې ټاکلو لارې چې يو څوک په هغو اصولو د پوهيږي او عملي ئې کړي . هغه اصول او ټکي دادي چې د مشرانو د ادارې په لار کښې مرسته کوي :

### لومړی قاعده:

کوم کار چې ستاسو د جمعيت ادارې او يا کوم څړي ته سپارل شوی دی پريږدی چې ځان مهم او مؤثر وګڼي ، په هره اداره او يا لويه موسسه کښې کوچنی کارونه هم شته تل به دې موافق او سي به هغه کوچنی کار او يا ځانګه کښې ځان مشر وبولي او د خپل ذوق او سليقې له مخه وظيفه سرته ورسوي او د هغه اختيارات خاص ودې د پارمه سلېوی چې تاسو خپل مشرتوب او برتري هر چاته وښياست او کله کله د هغه نظريات هم

د فوايدو ، د ادارې د مشکلاتو په باب د هغه سره خبرې وکړي او که تر تاسو ښه نظريه لري هغه او د مرورومنی .

### دوهمه قاعده:

د خپلې مؤسسې او يا ادارې مامور يا کارګر پريږدی چې ځان په خپل کار کښې موفق وګڼي او تل هيله من وي .

يو موړخ د يوې مؤسسې رئيس خپل مادون ته ويل : که تاسو په خپل کار کښې هر څو نه زيار او زحمت وکاږئ هيڅوک به ستاسو فدا کاريو او زحمتکښيو ته ملتفت نه شي مګر هر کله چې تاسو يو اشتباه او غلطي وکړی نو سمدستي پوښتنه او بازخواست د هغه کيږي .

د ادارې د مشر د غه خبرې پر مادون ډېرې بدې ولګيدې او هغه ئې مايوسه کړ او که ئې هغه ته د اميد خبرې کړي وای او بيا ورته ئې د کار د ير مغبول په وخت د آفرين په ويلو تشويق کړی وای دا کار د هغه مامور او يا کارګر د تشويق او روحي تقويې او ستري کاميابۍ سبب کيدی .

هر کله چې څوک د ادارې او يا مؤسسې د رئيس په حيث ستاسو ستاينه او صفت وکړي تاسو ورته ووايئ چې دې د خپلو همکارانو د زحمتکښۍ له کبله د غه موفقيت ته رسيدلی دی .

### دريمه قاعده:

داسې فکر مه کوئ چې مدير يا رئيس ياست او د هغه پر ځای به څه ډول د خپلې ادارې او يا مؤسسې د کار کوونکو او منسوبينو لارښوونه وکړی دا ځکه ښه مدير پر خپل مادون مهربان او د هغه سره موافق وي او صميمانه همکاري ورسره کوي ، کينه نه ورسره لري

او هر مامور دخپل مشر دخواخوږۍ او مهربانۍ انتظار باسي .

دیوې ځانګې مشر په خپل کار کښې چې کوم موفقیت وګټي په هغه سره ویاړي نو یو مشر باید دهر مادون روحي حالت مطالعه او ځان ته معلوم کړي دهغه دمیلو او تمایل څخه خبر شي او دهغه دمیل او علاقې

سره سم زیات کار و نه ورته وسپاري او خپلو ترلاس لاندې کسانو ته دلارښوونې په وخت کښې دغه څو ټکي په نظر کښې ونیسي .

۱ : خپل مادون ته وواياست که تاسي داسي وکړي نه به درڅخه خوښ شم .

۲ : آیا تاسو وخت لري چې دا کار پرمخ بوزي ؟

۳ : ستاسو په نظر به په دغه کار کښې موفقیت څنګه حاصلیدای شي ؟

دخپلو مادونانو سره داډول خبرې او وضعیت به هغو کښې د کار د پرمختګ دیو عجیب قوت او تشویق باعث ګرځي او په نتیجه کښې هغوی ځانونه ستاسو سره د کار په پرمختګ کښې سهیم ګڼي ستاسو پیشنهادونه په ټول په پوره غور سره اوري او ډیري خوښیږي به او هغو په عملي کولو کښې به ډیر شوق او ذوق آماده ګډول فعالیت وکړي .

څلورمه قاعده:

یو مشر خپل مادون او مامور دا ډول ځان ته علاقمند او نژدې کولای شي چې دهغه سره کومک وکړي او ملاتړ ئې سي او عملاً ورته وښئي چې تاسو ګران دي .

که ستاسو په اداره او یا مؤسسه کښې ستاسو دغلطۍ لارښوونې له کبله مو مادون خپه او په تکلیف دی او تاسو دخپل ذړه حال نشي ویلای نو تاسو دهغه کار مسؤلیت پر ځان وبولی او خپل مافوق ته دهغه دزحمتکښو په باب وواياست او ستاینه ئې وکړی .

که تاسو په کوم کار کښې اشتباه او غلطي وکړي دهغه بار او مسؤلیت پر بل چامه اچوی او ځان دهغه مسؤل وګڼی او په لنډه ډول دیوې مؤسسې یا ادارې مشر باید ځان دمؤسسې ته د خواخوږۍ او مهربان پلار په حیث وبولی او پر ټولو کارکونکو او مامورینو داسې مهربان وی لکه یو پلار چې خپل او لاد دوست لري .

پنځمه قاعده:

ټل خاکساری او عاجزي کوی ، که تاسي لوی کوی او ځان ته لویه القاب ورکوی او مادونان مسکیرلی ګڼی هیڅکله یو موفق او محبوب مشر کیدای نه شي .

په کار او مشر کښې بهترین سیاست تواضع او خاکساری ده او ترلاس لاندې کسانو سره په ورین تندی ، خندا نه لهجه او صمیمیت رویه کول په کار کښې بهترینه رویه او دبریالیتوب لار ده .

هیڅکله ځان نورو ته مهم مه ښکاره کوی دا کار ستاسو تواضع دمنځه وړی ، خودنمائي او خودخواهي مه درتقویه کوی او ستاسو حسن نیت او نیکو کارۍ ته زیان رسوي .

شپږمه قاعده :

دخپلو مادونانو او کارګرانو عیب مه وایاست او هغوی دچا په مخ کښې مه ملامتوی او دنورو په مخ کښې دهغو سرزنش په کار کښې دناامیدۍ باعث کیږي او ستاسو په نزد په ذړه کښې کینه پیدا کوي ، دهغو اشتباه

وي او غلطي په نرمه لهجه او ورین تندي ورته وواياست او دلیل ئې هم څنی و پوښتی او بیائې دسمون لار ځنې وغواړی .

دمادون سپکول دیو حقیقي مشر دحیث سره نه ښائي دا ځکه دا کار ئې دمادون حیثیت ته زیان رسوي او هغه مجبوره کیږي چې ده ته هم سپکي ووائي .

خپل مافوق ته هم دخپل مادون شکایت مه کوی که چیري ستاسو زیردست و پوهیږي چې ستاسو له خوا کوم زیان نه وررسیږي هغه خپله اشتباه ژر ګرځوی او په خپله غلطي اقرار کوی او کار سمیږي .

اوومه قاعده:

خپل هدف په هغه اداره او مؤسسه کښې چې مشر توب اوداست ئې ستاسو په غاړه دي ښکاره کړي او دلایل

هم په واضح ډول ګورته وړ ایاست چې ماډونان هم په خبر سی او که خپل مرام واضح نه کړی امکان لری ستاسو په مقصد خبر نه شی او کوم شی چې ستاسو همکاران او ماډونان ئې

اجرا کوی هغه یو ازې تشریفاتی جنبه ولری او ګټوره نتیجه ورنه کړی او داچول د دوی په ستاسو او همکارانو ترمنځ د مخالفت سبب کیږی نو خپل سیاست ورته څرګند او مرام ورته وړ ایاست.

اتمه قاعده:

شکایتونه او نارضایتونه په غور سره واوری دیوی ادارې د مشابهو دلیر کولو د پاره ترټولو ښه لار دغو ته کوا او د شکایتونو اوریدل او دهغو له منځه وړل دی.

نهمه قاعده:

دخپلو همکارانو د پاره په کار کی د شوق او مینې سرمشق و ګرزی د ښیلو بیلو کارونو څخه خبر و اخلی د کارونو د سمولو د پاره زیات زحمت پر خپل ځان ومنی او بخپله د خپل کار او ځان ستاینه مه کوی او بریږدی

چې د کار پرمختګ او ښه والی د هغه معرف وی.

لسمه قاعده:

دغه ټکی تل په یاد ولری چې هر څوک که انسان او د شخصیت خاوند دی که تاسو خپل ماډون یوازې د کار او زار او اسباب و ګڼی د ریاست او مشرتوب کلی موږ ورکه کړی ده.

ممکنه ده یو څو کسه ادارو او یا مؤسسه کښی ماهر نقشه کښونکی او یا تکنیسن میخانیک وی خو بیا هم د احقیقت مه هیروی چې هغه انسان او د خدای مخلوق دی.

هر څو که دوی کتوب له دوی څخه د بلوغ او

سپین ږدتوب تر وخته پوری سرګذشتونه لری د آرزوګانو او تمایلاتو خاوندان دی مشکلات لری سړی او نوری

ئې لیدلی او اوس هم خواهدی شخصیت ولری نو هغه

د کار مهره او اوزار مه ګڼی او هغه په خپل ځای کښی دخپلی دستګاه ګټور غړی و ګڼی.

که تاسو دخپل کارګر یا ماډون دزیږیدنی نیټه او دژوند خصوصیات په نظر کښی ولری او د اولاد

پوښتنه ئې و کړی دغه کار به تاسو دهغو په نظر کښی د یو همخوږ او مهربان مشر په حیث معرفی کړی او ستاسو او همکارانو ترمنځ به د صمیمیت او همکاری

بهترینه فضا منځته راولی او د کار د زیات پرمختګ سبب کیږی. پای

# په ورو ستیو لسو کلو کی

## د طاعون شل زره پیښی ثبت شوی دی

ژنیو:

دنړۍ د صحی مؤسسی په ورو ستیو لسو کلو کښی د طاعون څخه شل زره پیښی چې پوزرو پنځه سوه شپېږ او یا پیښی یی د مرګ سبب شوی ثبت کړی دی.

دغه مؤسسه پخپلی یوی خپرونی کی څرګندوی چې په ۱۹۷۰ کال کی د طاعون اته سوه دوه پنځوس پیښی ایدل شوی دی چې ددغی جملی څخه او ه ملو یشت تنه مړه شوی دی.

په طاعون باندی داخته ؤ نیما یی په ویتنام کی لید شوی او علت یی دهغه هیواد پر له پسی جګړی دی.

لکه چې په ۱۹۷۰ کال کی دهغو شمیر ځلور سوه یو ویشتو تنو ته ورسیده.

دنړۍ د صحی مؤسسې د طاعون د پیښی په ورو ستیو لسو کلو کی یعنی له ۱۹۶۱ څخه تر ۱۹۷۱ کال پوری په بیلو بیلو قارو کی ښودلی دی.

په افریقا کی د طاعون په مرض داخته کسانو شمیر پوزرو سل تنه دی چې ددغی جملی څخه دهغو یو سلو شپیته تنه مړه شوی دی.

د لو یدیځ په نیمه قاره کی ځلور زره اته سوه دوی پیښی لیدلی شوی چې دوه سوه او دوه دیرش یی د مرګ سبب شو یدی.

په آسیا کی به دغه مرض داخته شوو کسانو شمیر دیارلس زره دوه سوه اوه دیرش تنه دی چې ددغی جملی څخه یو سلو څلیر ویشت پیښی د مرګ سبب شو یدی.

د صدیق الله «اجتماعي» لیکنه

څلرمه برخه

# عالي انسان

په کوم ډول کېږي چې دوکه او تر منځ ولې د داسې خو ښېګڼې، انساني ورورولي، د دوستۍ او محبت عالي مقصدونه تر سره کېږي؟

بدغه ډول کېږي چې انسانان ژوند کوي یا په بل عبارت د بشر دغه لوی کورنۍ څرنګه جوړه شي؟

په حقیقت کښې بشري ورورولي ولې د بېلوالي او د دښمنۍ او بدبینۍ په ستر ګو ګوري؟ علتونه ئې څه شی دی؟

آیا دموږ ته د قدرت نشته چې دغه دښمنۍ او بدبینۍ د اېداله هیري او پر ځای ئې د مینې او محبت تخمونه وپاشو څو د معنوي ښېګڼو او حاصلاتو څخه ئې د تل د پاره موږ او زموږ د راتلونکي نسلونه برخوردار شي؟

زموږ په کوم ډول کښې ولې او برخه، چې ځانونه د یو عالي دین اسلام او اسلامیت خاوندان هم بولو، دغه ناوړه چلند بدبینۍ او دښمنۍ ته برېږي؟ ناسو د غه حقیقت ته لاسیده لی یاست چې علتونه ئې زموږ او ستاسې اعمال اخلاق او د ژوند ارتباط لا دی؟ آیا موږ کولای شو چې خپل دغه اعمال او دغه ناوړه کارونه او خطرناک خوېونه کنټرول کړو کم چې په

کوم لنه کښې دغو ټر منځ بد بېنې پیدا کوي؟

هو، دغه جواب مثبت دی او دغه کار آسانه دی. څو مهم شرطونه دادي چې دغه موضوعات چې ذکر ئې دلته په لاندې ډول راوړوم هر څوک ئې په ټینګه اراده او پاک وجدان سره بشپړه پر خپل ځان عملي کړي او پرې پوه دي چې تو د انساني ضمیر ونه دغو افاتو تر اغېزې لاندې راشي او د کوم لنه تېکمړغی او اعتماد په بدبختۍ او بې اعتمادۍ بدل شي.

لومړی ـ د رښتیا او دروغ ویلو موضوع ده، آیا کمه شی او علت دی چې تاسې په خبرو کې دروغ وایاست او لې تاسې د دغه ناوړه کار څخه په داسې حال کې چې څو ځله تاسې خپل حیثیت او اعتماد دلاسه ورکړی دی بیا هم د دغه کار څخه لاس نه اخلئ؟

تاسې هغه وخت هم بیاد لرئ چې ستاسې اولاد او یا ستاسې نږدې دوست او ملګری چې د یوې موضوع د حقیقت نه خبر دی او تاسې دهغه په مخ کې د یوه بل دوست او ملګری ته د هم هغسې موضوع په باره کښې دروغ وایاست او هغه خطا باسي دلته تاسو فکر کولای شي چې تاسې خپل اولاد، دوست او ملګری ته خپل حیثیت او اعتماد دلاسه ور کړی دی؟

ورو سته بیا ستاسې دغه دوست او ملګری کله چې ستاسې په وینا باور کړي دی او وده ته دا ثابته شي چې ته یو دروغجن ملګری یې او وده د اعتماد، ملګرۍ او انسانیت څخه تاسو غلطه استفاده کړې ده او ستاسې تر منځ حسد او کینه پیدا کېږي او هغه کوښښ کوي چې ستاسو د دغه خیانت په بدل کښې له تاسو څخه غچ واخلي څو دغه حسد او کینه په یوه شیطاني تحریک سره ستاسو دوستي په دښمنۍ بدله وي.

لوی څښتن (ج) په خپل با عظمته آسماني کتاب (قرآن کریم) کې دروغجن خپل دښمن بللی دی او بل ځای ئې پر دروغجنانو لعنت ویلی دی

دروغ ویل بوازې دا نه چې عالي انسان د هغه څخه کر که کوي بلکه و هیڅ یوه انسان ته نه ښائي چې د دغه بدخوی خاوندوي او یا په بل عبارت د غه ناوړه عمل انسانان یا بد و شیطانانو ته برېږدي

ولې چې دغه کار د انسانیت د ستر مقام او بشري کرامت سره هم بر مخالف کار دی.

دوهم ـ د عهد او پیمان موضوع ده چې د کومې لنې د غو د په منځ کې دغه مهم صل لوی نقش لري.

لکه مخکې چې موږ عرض
کړل چې دروغ د انسان د شرف
او حیثیت سره متضاد دي او د انسانانو
په منځ کښې د ټولنې اعتماد او
بې اعتمادي یا په بل عبارت حسد
او خوشبیني د وګړو په عهد و پیمان
پورې مستقیم ارتباط لري. دغه وعده
وعید یا عهد و پیمان که په ټولنه
کښې د فرد د فرد تر منځ وي او یا که
د ټولنې د ډیرو ډیرو تر منځ وي،
په شفاهي صورت او که د لیکنو په
شکل وي، د عرفي حقوقو په اساس
وي که د مدني او بین المللي قوانینو
په اساس، په تجارتي چارو کښې
وي او که په سیاسي چارو کې، په
دا ټولو شکلونو، او که د یو ټولګي
موجود د باره، خو که د یوه مخه د
متعاهدینو په قول او عهد کښې بې
وفائي وکي او تاسې پوهیدلای
شئ چې د ټولنې ته به بدبختۍ لا پیدا
کړي ده.

د لته بیا هم موږ د ټولنې
وګړي ته د مدغې پوړ تنې موضوع
په هکله د ځان د مطالعې واک
سپارو چې آیا تاسو په خپل ژوند
کې د ټولنې د هغو عاتو سره په
خپلو وعدو او معاهدو کښې څو
واري او ولې خپلې معاهدې ماتې
کړي دي؟
آیا دغه یوه وجداني ګناه او
انساني لوی خیانت ندی چې د خپلو
د هغو ملګرو د شرافت او د په
اعتماد د هغه ناوړه ګټه
اخلئ؟

آیا تاسو په دې باور نلرئ چې ټول
قولو چه یا ټیسې صداقت ټاکل شوی او د
انسانانو د دنیا او آخرت د سعادت متضمن
دی؟

تاسو به ډیر ښه پوهیږئ چې، ستاسو دغه
طفلانه فریب او ډوکه بازي به ټولنه پر تاسو
باندې بې اعتماده کړې ده، او که د دغه
ناوړه اعمالو او عهد ماتو له مخه پښیمانه
نه شئ، نه یوازې دا چې په ټولنې کښې مو
خپل ځان او حیثیت د لاسه ورکړی دی
بلکې په آخرت کښې، م د لوی څښتن
(ج) په حضور کښې د یوه دقیق پښپړه
حساب ورکوونکې یاست چې هلته بیا
بلمې، دروغ، دوه مخي او نور شیطاني
دسیسې به درد نه خوري او نه د رب العالمین
(ج) د انسانانو تر حقوقو تاسې ته
تیریږي.
څرنګه چې الله العالم (ج) د بشر ته
د اشرف مخلوقات په نامه خطاب کړی دی
نو ته او ستا ناقص خیال او نه تر کله د چټیاتو
تر ناوړه اغیزې لاندې ژوند ته دوام

ورکوئ؟ د خپلو ورو ډو په غیاب کښې ولې د
پاک او خوشبین زړه د دردولو څخه
ډډه کوئ او نه غواړئ چې د خپلې ملي
یاد ښې او یا بشري ورو ډو په ښو خویونو
باندې یاد ونه وشي او یا د هغوی د عالي
اخلاقو څخه د ځان په ګټه معنوي درس
او عبرت واخلئ؟ په عکس د چټل ضمیر او
بد بین زړه په لار چوونه کوښښ کوئ
چې د خپلو د غوصادقو او یو مخي ملګرو
سپکتیا او بې حرمتي وشي آیا تاسو
خوښ لرئ چې یو څوک تاسې سپک کړي
او یا تاسو ته دروغ ووائي؟

او یا مو په غیاب کښې غیبت
وکړي؟
آیا دغه تاسو خوښ لرئ چې
ستاسو شرف او وقار ته په سپکه
څوک وګوري او یا مو تمسخر
کړي؟
آیا دغه تاسو خوښ لرئ چې
ناپوهان د خرافاتو د لارې پر تاسو
باندې لوبې تیاغوالئ؟
آیا دغه تاسو خوښ لرئ چې یو
څوک ستاسو د علم، فضیلت،
شهرت او ښو اخلاقو څخه مخ
وګرځوي بې موجبه حسد او کینه
درسره ولري؟
آیا تاسو دغه خوښ لرئ چې
تنګ نظران ستاسو په منصب، رتبه
او عزت باندې مغموم او متأثر
وي؟
آیا تاسو به دې خوښ یاست
چې یو سړی د مخه تر دغه چې تاسو لا
په اصل او حقیقي معنا ونه یاست
پېژندلی، پر تاسو باندې د بد سړي
حکم کوي؟
آیا تاسو دغه خوښ لرئ چې
د محیط او ټولنې فاسد اشخاص د
خپلو فاسدو غرضونو د سر ته رسولو
دپاره هم دغسې فاسد او ناپوه
خلک ستاسو د آزار او تکلیف د
پاره استخدام کړي؟
آیا تاسو دغه خوښ لرئ چې
پاک او بې ګناه خلک ستاسو په
مخ کښې څورېږي او تاسې هغه ته
څه نشئ ویلای؟ (نور بیا)

مرکه او مصاحبه:

رحمت الله هروند:

# د کندهار د مېرمنو ټولنه په ۱۳۳٦ کې منځ ته راغله

## په اجتماعي نهضتونو کې د ښځو ګډون او د هغو تنویر د مېرمنو ټولنې ستر هدف دی

د کندهار د مېرمنو ټولنه چې د ښځو د تنویر، اقتصادي وضعې د ښه والي او د هغو د استعداد د ودې د روزلو د پاره په خدمت لګیا ده،

یوه ډېره مهمه اجتماعي مؤسسه ګڼل کېږي. د دې له پاره چې ګرانو لوستونکو ته د دغه ګټورې مؤسسې

او د هغې د فعالیتونو په باب معلومات تر لاسه کړي په دې هکله مو د دې مؤسسې د مدیرې پېغلې قمر «اڅکزۍ» سره مصاحبه او مرکه

وکړه چې په دې ډول ئې ګرانو لوستونکو ته وړاندې کوو:

س: د کندهار د مېرمنو ټولنه په کوم کال کې تاسیس شوې ده؟

ج: د کندهار د مېرمنو ټولنه په ۱۳۳٦ کال کې د لومړي ځل د پاره په ابتدائي شکل تاسیس شوه.

س: د مېرمنو ټولنه اساساً د کومو مفکورو په اساس منځ ته راغلې ده؟

ج: لکه څرنګه چې ښکاره ده

ګران هېواد افغانستان کې د عصر د تحولاتو د غوښتنې سره سم د نورو مدني او تخنیکي پرمختګونو په ترڅ کې اجتماعي نهضتونه منځ ته راغلل د دې د پاره چې دغه نهضتونه ښه تر ښه ګټور

او په نړۍ کې چټکې پر مخ ولاړ شي د ښځو د طبقې همکارۍ ته په ټولو مدني او اجتماعي چارو کې د ښځو ګډون ایجابوي. د دغه ستر هدف د ترسره

کولو او د ښځو د تنویر، اجتماعي او معنوي ودې د پاره د دې ګران هېواد په مرکز او ولایتونو کې لومړني او عالي

ښوونځي جوړ شول او حتی په مرکز کې نجونو د پوهنځیو د تعلیم چانس هم لاس ته راووست او اوس د ښځو د ځوانانو په قطار کې خپل لوړ تحصیلات حاصلوي

او د بلې خوا په مرکز کې د مېرمنو ټولنه منځ ته راغله چې د دغه مرام ښه تر ښه پرمخ بوزي او په خپله مېرمنې په هېواد کې

د ښځو د تنویر او نهضت په پرمخ بیولو کې په بریالۍ توګه برخه واخلي. او د مېرمنو د طبقې استعداد په روزلو کې زیات کوښښ وکړي نو اوس د دغې مؤسسې څانګې

د کندهار په ګډون نورو ولایتونو ته هم پراخې شوې او د افغانې مېرمنو د بیدارۍ په لاره کې خدمت کوي.

س: د کومو شرایطو له مخې مېرمنې کولای شي چې دې ټولنې ته شاملې شي؟

ج: د مېرمنو ټولنې د ټولو وطنوالو مېرمنو مخې ته پرانستې ده هغو په مخې موادو کې هغو مېرمنو ته چې د بې کارۍ سره لاس او ګریوان دي موقع ورکول کېږي، هغو د دې لارې د هغو سره په ژوند کې مرسته شوې دی.

البته لومړني شرایط یې دېوې د درخواستې څخه شروع او د دوسیه تر معلوماتو او څېړنې پېلېږي کوم حق الشمول په ورکولو ګډه دې د مېرمنو ی مرستې د پاره اقدام کېږي.

س: د کندهار د مېرمنو ټولنه څو څانګې لري او کومې کومې دي؟

ج: د کندهار د مېرمنو ټولنه په اوسني حال کې اوه بېلې بېلې څانګې لري.

(۱۰ مخ)

۱: د تنو پر افکار ځانګړې چې
دلوبانو کوردسونه اري.
۲: د ګنډلو ځانګړې ده چې
د یوې داخلي او یوې خارجي معلمې
له خوا مخ ته ځي.
۳: د فرمایشاتو ځانګړې ده
چې د رسمي او غیر رسمي
مؤسسو د هر ډول ګنډلو فرمایش
مني.
٤: د بافت ځانګړې.
٥: د کندهار د لاسي کارو
د خاص صنعت یوه ځانګړې ده چې
یوازې کندهاري خامک پکښې
کیږي د کندهار د خامکې پرسیره
پردې چې خپله خاصه ښکلا اري
موږ یې د هر کال د کالو د کښلا کې
له مخې وډیزاین ته تغیر ورکوو.

پدې برخه کې لس تنې کار
کوونکې د یوې معلمې تر ښوونې
لاندې کار کوي د ځانګړې به
د باندې کې هم په اجوره کارونه
ورکوو چې د ذباندې ښځې د دغه
کار د اجورې له لارې خپل ژوند
تامینوي.

٦: وړکتون
۷: آرایشګاه (سنګار ځی) دی.

س: د لاسي کارونو کار چې
سر ته ورسیږي بازار ته یې وړاندې
کوئ که څنګه؟

ج: ځینې یې مرکز ته لیږو او
ځینې یې په دننه مؤسسه کې
خرڅوو.

س: د میوا د په دننه او د باندې
کې مو د جشن په ورځو کې کومه
غرفه جوړه کړې وه او که
یا؟

ج: مو په هر کال د میو او د
جشن په ورځو کې یوه غرفه د
مؤسسې د باندې جوړه وو خو سږ کال
دغه غرفه د موسسې په دننه کې
جوړه او زیاته اندازه اموال مو
خرڅ شوه. مګر د میوا و د باندې خاص
د دې مؤسسې په نامه کومه غرفه
تر اوسه نلرو.

س: د میرمنو ټولنې په
وړکتون کې اوس څو تنه کوچنیان
شامل دي؟

ج: ـ زموږ د وړکتون د سږ کال
د میزان په میاشت کې د دې ځای
د کوچنیانو د روزنې په منظور
پرانستل شوا او اوس فقط دیرش
تنه کوچنیان اري.

س: څرنګه چې د میرمنو
ټولنې ودانۍ پخوا جوړه شوې ده او
وړکتون نوی پرانستل شوی دی او
وړکتون ته مو بیل ځای جوړ کړی
او که څنګه؟

ج: د اوس د پاره دغه ودانۍ
د وړکتون او کوردسونو د پاره
کافي ده خو څرنګه چې مؤسسه د
پراختیا په حال کې ده د راتلونکې
وخت د پاره په نظر کې دي چې
د مؤسسې په دننه کې نوې
ودانۍ هم جوړه شي چې پر دې
موضع اوس خبرې روانې دي.

س: د وړکتون د لوبو او یا د لوبانو
د کوردس د سامانو نو له پلوه څه کم
مشکلات نه لرئ؟

ج: د وړکتون د لوبو شیان یوه
اندازه یې د مرکز څخه را استول شوي
دي او یوه زیاته اندازه یې د دې ځای
د خلکو په مرسته بشپړ شوي دي د
کوردسونو د سامان په هکله هم اوس
د کوم مشکل احساس نشته.

س: آیا په دې مدیریت کې د پراختیا
په غرض کوم نوي پلانونه تر لاس لاندې
دي؟

ج هو مؤسسه هڅه کوي چې د
کندهار د میرمنو د پاره ګټور خدمتونه
وکی او نور هم خپلو ځانګو ته پراختیا
ورکړي چې په همدې منظور د دا کاپرو
نور کوردسونه، د قابلې کوردسونه،
وړکتونونه او دغه رنګه د مؤسسې د مادي
بنسټ د ټینګیدو د پاره اقتصادي لارې
چارې په نظر کې دي چې یوه د هغو څخه
د دې ځای د اموالو د زیات توجه او
خرڅولو د پاره د یوه د دې بند و ترین جوړول
لازم بلل شوي دي چې د دغه کار بشپړه ول
د کار د خلکو د خو ادمرستې په توګه
په غالیه اخستل شوي دي او کار روان
دي.

## د ژوندانه لار

وظیفه پیژندل باید د اقوامو او دنیې
دملتونو د خلکو ډیر لوی نعمت او موهیبت
وګڼو.

استقامت او اعتماد پر ځان د ژوند
ټول ختنیو ته له منځه وړي او انسان ته ډیر
نا ممکن شیان ممکن ګرزوي.

د خارجي مطبوعاتو څخه:　　　　　　　　　　　　د ښاغلي حسام الدين حسام ژباړه:

# د سرطان خطرناکه ناروغي د پوهانو د زياتي څيړني په نتيجه کښې تر علاج لاندې راغله

تر اوسه د خلورسوو په شاوخوا کي د ميلو ميلو ويروسونو ولونه کشف شوي دي کوم چي په انسان کښې د زرگونو ناروغيو او دردونو سبب گرځي او هر کال په ميلونو انسانان په اخته کيږي او مري .

دغو ويروسونو په اوس وخت کي زيات وگړي په ډول ډول ناروغيو لکه: زکام، سنه بغل، قوڅي، سکاروي او نورو ناروغيو لړلي او د ناروغي د بستر غيږې ته ئي سپارلي دي .

کوم ويروسونه چي د انسان وروغوالي ته تاوان او ضرر پيښوي يو يادونه دي ويروسونه کولای شي د انسانانو د ژوندي بدني او ژوندانه مخه ونيسي او يو ټپر وړو کي

ويروس د اتوان لري چي د يوي ناروغي په را پيدا کولو سره يو انسان د ټول عمر له پاره د روغوالي او سلامتي څخه بي برخي کړي.

د ويروسونو څخه د را پيدا شو ناروغيو له کبله هر کال په لکو لکو وگړي، مړه ژ بيږي .

ويروسونه د عصابو مرکزونو ته نفوذ کوي د کو چنيانو د فلج کيدو سبب گرځي، پر مغز او په باندي حمله کوي، د بوي ناروغي «آنفاليت» را پيدا او د ژړي تبي د خطرناکي ناروغۍ سبب گرځي او بالاخره د سرطان تباه کوونکي خطرناکه ناروغي منځ ته راوړي .

هغه عامل چي په خپل قول توان د کولای سي د دغو قولو ناوړه ناروغيو د ښي قطع او بشر د دغه لوی مشکل څخه

وژغوري د کلو کلو راهسي د طبي پوهانو له پاره د ستره هيله ده. اوس دا دي د ډيرو کوښښونو له برکته د غه ژوند بخښونکي ستره ماده کشف شوي ده .

د دغي حياتي مادي کشف کوونکي ډاکتر «ليندمان» اوس هم نسي کولای په دي باور وکړي چي دي بريالي شوي

دي دغه ډول يو ډير مهم کشف وکړي اوس په دې گوروو چي دغه سويسي ډاکتر او ميکروب پيژندونکي څنگه او په څه ډول په دغه سي يوه لوي او زيات مهم کشف

بريالی سوی دی .

ډاکتر ليندمان په ۱۹۵۲ کال کښې دوه ډوله بيل ويروسونه په يوه ځای کښې

تلقيح کړه او خيال ئي درلود چي دغه دوه ويروسونه به د ځکي په دو بيلو برخو کښې د خپل منځ توليد کولو کښې ونده او نمو وکړي .

خو ورځي وروسته چي ئي اصلي ماده او ځکي د ويروسونو د موجوده مقدار له مخي تر څيړني لاندې ونيول په ډير حيرانتيا ئي وليدل چي هيڅ يو ويروس لا هم په ځکي کي نسته .

او دا خيال ئي کاوه چي البته

په دغه ازموينه کښې به ئي اشتباه کړي وي . کله چي ئي څو ځله دغه عمل تکرار او کړ، بي فايدې ؤ ځکه

په هر وار کي ئي د ويروسونو هيڅ اثر هم ونه ليدي په پای کي ستړی او د دغو ازموينو څخه ئي لاس پر سر کړ . حقيقت دا چي تصادف، دی

د لويو کشفونو په مقابل کښې واقع کړی ؤ نو ده په هغه وخت کي ونومړی کشف ته چندانې پاملرنه

ونه کړه او د دغو ازموينو لاره خطا او په نورو کارونو بوخت شو .

يو کال وروسته ډاکتر ليندمان د افرصت موندی چي د «ميل هيل» په ميکروب پيژندونکي مشهوره ازموينځې کښې

په کار اخته شي په دغه ازموينځي کښې کوم چي ده په هغه کښې د خپل کار او فعاليت شپې سبا کولی يو ځلي بيا تصادف دده ملگري سو

هغه دا چي يو ورځ ډاکتر ليندمان د ازموينځې په کلوپ کښې د غذا خوړلو په ترڅ کښې د ميکروب پيژندونکي او مشهور پروفيسر

تیزی ارایساکت سره مخامخ شو. او دوی ترمنځ خبری شروع شوی دخبرو په ترځ کښی ډاکتر (لیندمان) نوموړی پروفیسر ته دخپل

یو کال دمخه ازموینو دبیښو په برخه کښی معلومات ورکړ خو کله چی نوموړی موضوع

پروفیسر ایساکت دزړه تی پاملرنی وړ وګرزیده نو غوښتنه ئی وکړه چی دغه ازموینه یو ځلی بیا په ګډه سره د «میل هیل» دازموینځی

په نوی اختراع شوو عصری وسایلو سره ترسره کړی.
دوی دواړه په ازموینه بوخت

شول او دا ځل ئی په الکترونیکی میکرسکوب سره چی دهغه قدرت فوق العاده ډیر ښه ئی او پلټنی ته دوام ورکړی. خو دالکترونیکی

مکرو سکوب لاندی هم هیڅ ویروس نه لیدل کیدی. خو ځلی ئی نوموړی ازموینه تکرار کړه

خو کوم اثر ئی نه درلود او نتیجه ئی دپخوا په شان وه.

ډاکتر لیندمان دخپلو ازموینو په برخه کښی داسی وویل: «زه تر

دی حده دخو ازموینو څخه ستړی او عصبانی شوم چی مکروسکوبی عکسونه می یلی خواته و غورځول

او ..... » بالاخره دغه دوه پوهان په دی فکر کښی شول چی ښایی دغه پدیده یو خاص علت ولری. بیا هم نوموړو دوو تنو پوهانو

وخپلو پلټنو او ازموینو ته نور هم ادامه ورکړه او ډیری اوږدی

شپی ئی په ازموینځی کښی سبا کړی او په ګډه ئی په ډول ډول ازموینو لاس پوری کړ.

بالاخره په هغه هکی کښی چی ددوو ویروسو په تلقیح سره لیدل شوی وه یوه نوی ماده کشف کړه او دی نتیجی ته ورسیدل چی دغه ماده ددوو ویروسونو دتلقیح له

کبله خود بخود منځ ته راغلی ده او دا ډول خاصیت لری چی هر ډول ویروس له منځه وړی دغه ستر کشف چی د بشر د ډیر

لوی او خطرناک دښمن په مقابل کی ددفاع کولو نوی وسیله را پیدا شوه دغو دوو لویو پوهانو ددغی مادی نوم (اینترفرون) کښیښود

دوی وکولای شوای پدی بریالی شی چی دخو هفتو په موده کی دهغو اسرارو او پټو رازونو څخه چی ددغی حیاتی او

مهمی مادی په شاوخوا کښی موجود وه، پرده پورته کړی. دوی متوجه شول چی دیوی دفاعی مادی سره دتصادف په صورت کښی مخامخ شوی دی چی هغه دانسان په

بدن کښی دویروسونو په مقابل کښی تولید کیږی او تراوسه نه وه پیژندل شوی.

ترهغه وخته پوری چی دعلم او پوهی له نظره دغه ټکی روښانه شوی وه چی دانسان د بدن د اعضا ددردو او ویروسونو په مقابل کی د(انتی کور) په نامه

یوه ماده ترشح کوی او ویروسونه له منځه وړی. خو بدن ته د ویروسونو دداخلیدو څخه بیا تر هغه وخته چی بدن د

«انتی کور» ماده ترشح کړی ورځی ورځی او کله کله بیا هفتی په بر کښی نیسی چی په دی وخت کښی ویروسونه

دانسان دبدن په دننه کښی په فعالیت وده او نمو شروع کوی. او دبدن یوه برخه تر حملی لاندی نیسی او کله بیا داسی قوی کیږی چی نور نو بدن دهغه په مقابل کښی نسی کولای مقاومت وکړی او ناروغه مری.

خو د دغو دوو پوهانو (ډاکتر لیندمان او پروفیسر آیساکت) کشفیاتو داخرګنده کړه چی «انتی کور» ماده یو ځای دانسان د بدن دفاعی وسیله

نه ده بلکه دمخه تر دغه چی بدن د نوموړی مادی په تولیدا و ترشح شروع وکړی یو بل فوری او

صمدستی اقدام د بدن له خوا شروع کیږی هغه پدی ډول چی کله یو ویروس بدن ته داخل شی دیوه یا دوو ساعتو په وخت کښی د بدن دهغه غړی له خوا چی د ویروس تر حملی لاندی راغلی دی یوه بله ماده چی (اینترفرون) یادیږی په ترشح

شروع کوی کوم چی ویروس له منځه وړی. خو که ویروس پدی ماده باندی بریالی شو نو دا هغه وخت دی چی د ناروغی آثار پر

انسان څرګندیږی. و دوسته تر هغه چی دغو دوو پوهانو په ۱۹۵۷ کال کښی دلومړی ځل له پاره خپل دغه کشف اعلان کړی. دطب په نړۍ کښی زیاته هنګامه او زلزله خپره شوه او دا امید او تصور راپیدا شو چی اوس نو ګواکی د

ویروسونو سره دمبارزی لاره ډیره آسانه ده څکه په مصنوعی ډول

(نور په ۲۴ مخ کښی)



مرتب او تهیه کوونکی: ایوبزی

پوهنوال کندهاری (رشاد)

## د زړه لمبه

قلمه! ګوره ځان به تا سوی نغمه لیکمه
دستر ګو اوښکی د خواږه آه د زړه لمبه لیکمه
د کاغذ په مخ اوښکی د کوګل تو ندا غونه
د زړه په سرو وینو د مینې سر نامه لیکمه

چې په شرنګا سرې مستې لیونۍ د هیلو
د ګران آشناد مستې مینې زولانه لیکمه
د تیمو شپو د د لګد ار مانتظار د بیتابی
د جدایی له درده چې که ترانه لیکمه

د محرومۍ په اوښکو لوند په جنون څیری ګریوان
د پر د بسې په غم لیلی افسانه لیکمه
دا د هجران له خواشینی په ژړا تنی ستړ ګی
دا د حرمان دا اور په تاو الوې سینه لیکمه

دا دو صال د ناامیندۍ په غم شکولی ځوی
دا د ما تود نا مرادیو نښانه لیکمه
دا د خزان بلا وهلی وژړ ما تی بلبل
د بی نیازۍ په شمع سوی پروانه لیکمه

چې لی تنها کې نه ځاییږی د مینې پر څنګر
د مینې زړه هغه جانسو زه شراره لیکمه
چې لې زوی د صبر غرا او د تمکین باټو نه
په تا د ماتو زړو نو هغه زلزله لیکمه

زه نو د څه نه لیکم فقط د محبت په حکم
د بیوفا آشنا حضور د ته دا ګیله لیکمه
نوم چې دی اخلم ستونی ژ په شونډی دواړه سوځی
په خیال دی وینی د زړه اوښی ما غزه واړه سوځی



د پوښکین اثر:

## د هوسونو مرګ

زما هوسونه مړه شول خو زه لا ژوندی یم.
ما خپل زړه له خوږه او خوندورو ژباوو څخه
وشکاوه او مړ نه شو ما وس ماته بې له رنځ
تیرولو او غم خړلو نه تور څه نه دی پاتې.
زما غلی او چوپ زړه د همیشه دپاره
د امید له تودوالی محروم دی
زما د سرنوشت طوفانونو زما د ژوند تر او تازه
ګل مړاوی کړ اوس زه یوازې له نا امیدۍ او د افسردګۍ
سره مخامخ یم او د نجات ورستنی کړۍ ته ګورم.
زه هغه وچه پاڼه یم چه منی او خزان ئې لیدلی مګر دالا په
لغړ ښاخ پاتې ده. او د ساړه ژمی بادونه ئې رپېږدوی.

شپون:

## سپین کبان

آشنا می مخی ته ځنګل و هلی
دسند او بو ته به ځیر ځیر ګوری
دسند پر غاړه بخملی واښه دي
په شنو او بو کښی سپین کبان چوری

شونډې غوڅې شی سرې نجونې نرې
بیا ېرې نرې لکه خندا راشی
بیا بی دا جګی کړی زما شونډو ته
په قول د جودی دې دیدا راشی

د آبشار ونو دېډ وېړ ونو سره
بوسې اومه دې د مینه د اغلـه
د ولو تاندی ځانګی ورېږ دیدې
ور سر د مستې همهمه د اغله

آشنا می مخی ته ځنګل وهلی
دسیند او بو ته به ځیر ځیر ګوری
دسیند په غاړه بخملی واښه دی
په شنو او بو کی سپین کبان چوری

---

زه ستا په هجر لو لپه شوم ته وا (چه وته سو)
پر خپل سو ځلی دی و پښته قدد هم زړه وته سو
کومه هستی وه چې ما ستا په یاد بر باده نه کړه
خو تا مې مستې مینه تشه د پیا ده نه کړه
له ما په تا پسې د ژوندواړه خوندونه هېر سوه
تا په پردو و لیکو خط یادونه کړم کلونه تېر سوه

هندي ادب: نامتو شاعر سروجني نایډو

# د زړه هدیه



زما محبوبه!

که ښایست له ما څخه وای نو ما به ستا د محبت په قربانګاه کې د یوې نادر لجودی غنچې په څېر سپارلی کړی وای .

ګرانه!

که عظمت او بې له ما څخه وای نو ما به هغه د محبت په کیف آوره شرابو کې د یوې قیمتي مرغلرې په څېر اچولی وای .

آرچار آتیره!

که ما فضیلت درلوده ای نو د شهرت د نا مودی تړیه روښانو نکی اعزازونه به مې ستا پر سر باندې درښاد کړی وای .

خو افسوس چې دا قول د محبت په بله قربانګاه کې د کافور په ډول وا لوتله او س له ما څخه پرته له یوې ژوندی وړانګې نه د عشق بل شی نه شته ، زما د ژوند د کې ژړه د جذبات و په وړانګا د هر شي سر څی .

دا خو زه او امید باخوونکی هدیه هیڅکله زما مضطرب زړه ته آرام نشي ورکولای تل ای د خو دستا ای خواته کشوی او د محبت د لارې دستاینې په تشو مچولو سره داده ورکوی زه پرته له دغې نا چیزې هدیې څخه چې (زړه) دی بل څه نه لرم ته دا قبول او ما ممنون کړه .

زمونږ نوی ادب: سلیمان لایق

## کاروانونه

بې مطلبه بې مطلوبه هره خوا دی ګامونو
نه پوهیږم کوم بلو ځی دا زمونږ کاروانونه
په دی ورانه قافله کښې نه مجنون شته نه لیلی شته
چا نه بوسو او ما نو نه چا ته و ژاړو غمونه
نه بخپله له صحرا نه سمې لارې ته و تی شو
نه رهبر لرو چې مخکښې له مونږ وا خلي قدمونه
کاشکې نه وای همره اشوی د دې ورکې قافلې زه
یا بدله وای دا زمکه او یا نو د وای دا کلونه
ویښ به نه شي دغه قوم که نغمه شي سر تر پایه
یار د باب غوندې کوباشی دلا یق د زړه تارونه

عوامي ادب: د پښتو ټولنې له:

## نجلۍ

نجلۍ بخپله ښایسته ده
زر ګره ستا به ګینه اوډ بودي کوینه
نجلۍ د باغ د لودي دا غله
سالو ئې نسته به مړوند مخ پټوینه
نجلۍ بر سر دی منګی مات شه
چې دی او به پر سالو لیکه ایکه څښینه
نجلۍ د کودر تر شا چې خاندي
لکه بریښنا د هندو کش تر شاو شینه
نجلۍ و ړه دیاری نه ده
نا پوه مودښې ورله سترګې تودوینه
نجو نو به ګودر کې ارمان وکړ
دوی بې مي ګودر ونه بلمې خاوري زړوینه

### د ښځو ښایست

د ښځو د پاره ښایست بد بختي ده . (سقراط)



ښایست د هغه وخت څخه شروع کیږی چې زړه د دوستۍ کو لو لایق ګرځی . (لابرویه)



ښایست هم یو لوی ثروت دی . (سیون)



بې اندازې ښایسته ښځې په دوهم وار کتلو کې ما لیه متعجب کوی (ستاندال)



ښایسته ښځې تل مغروره وي (...)



یوه خلک د ښځو باطنی ښایست ته ګوري مګر بې عقلان تل د ښځو ظاهری ښکلا ته نظر کوي . (...)

له لب تاریخ سند څخه: پښتو کړونکی کندهاری سړ ین:

# حضرت عثمان «مروندی» یا میمندی چی په لعل شهباز قلندر سره مشهور دی

لعل شهباز قلندر چی په قلندر باچا سره شهرت لری دسید کبیر زوی ؤ چی د نسب سلسله ئی په لاندی ډول سره وامام جعفر صادق (رض) ته رسیږی .

سید کبیر ـ زوی دسید شمس الدین ـ زوی دسید نور محمد شاه زوی دسید محمود شاه زوی دسید احمد شاه زوی د سید ها دی زوی دسید مهدی زوی دسید منتخب زوی دسید غا لب زوی دسید منصور زوی دسید اسماعیل ؤ چی سید اسمعیل بیا دامام جعفر صادق (رض) منځوی زوی کیدی ـ (۱۱۱۷)

قلندر باچا په ۵۷۳ ه کال کښی په مروند (میمند) نومی ځای کی چی د افغانستان د هرات له توابعو ځنی کیږی ، زیږیدلی .

ویل کیږی چی پلار ئی تر ډیره عمره بوری متأهل نه ؤ بوه شپه ئی خوب لیدی چی قلندر ورته وایی مادر و باسه

مگر پلار ئی په جواب کښی ورته وویل د جنت د اوتل د دنیا تر د او تلو فضیلت لری ځو قلندر باچا ئی د اوینا ونه منله او ووی ویل که د جنت د اوتل افضل کار دی نو ودنیا ته د اوتل هم احسن کار دی .

څو ځله ور دوسته ددغه خوب حقیقت دزمانی و باچا ته ښکاره شو او دا ورمعلومه شوه چی د قلندر پلار د ازدواج کولو ایوال دی نو سمدستی ئی ښځه اوروده په نکاح کړه .

لعل شهباز قلندر کله چی په ځنکلس کلنی توب باندی د هند په سیاحت ووت د شیخ منصور د به صحبت چی دهغی زمانی له دسید لوو لیانو څخه ؤ مشرف شو او د هغه لاس نیوی ئی وکړ . بر ته له ظاهری تحصیل څخه په معنوی تحصیل هم بخت شو بیائی له بهاؤ الدین ملتانی (رح) شیخ فرید الدین شکر گنج (رح) او شیخ جلال الدین جهانیان سره څو محله لیدنی کړی او د هند او سند د نورو علاقو د سیاحت په سلسله کښی په (٦٤٤ه ـ ۱۲٤٦ ع) کال کښی د سند د سیوستان (سیوان) په ښار کښی چی اوس په سیون سره مشهور دی متوطن شوی دی .

وائی په هغه محکه کښی چی قلندر د سفر بار اچولی ؤ (او لیان) او سیدل دوی په پیدا یی د قلندر ته کوم اذیت د سولی ؤ چی په یوه شپه کښی دشپو ئی یو بر جماع باندی قادر نه شو

او بیا اسهاد ئی یو ؤ بل ته شکایتونه سره کول او دا ئی یقین ؤ چی د قلندر د کرامت په اثر سره د دا مردی په مرض اخته شوی دی کله چی له خپلو کړو څخه ئی معافی وغوښتله سمدستی د ټولو مرض له یوه سره څخه لیری شو .

د روضی د محکی څښتن قلندر ته د خانقا جوړولو اجازه نه ورکوله او د کار مانع کیدی ئی . قلندر باچا ته قهر ورغی او دلکړی په یوه وار ی سره ئی مړ او بیا ئی په همدغه احاطه کښی ښخ کړ د مړی خپلوانو د مړی د غوړیدو د او اخیستله قلندر ورته وویل ماسړی نه دی وژلی سړی می وژلی دی که مو باور نه کیږی قبر ئی وشنی حقیقت به در معلوم شی هغو چی دقبر محکه وشنله په رشتیا سړی ښخ ؤ نو د خپلو کړو څخه پښیمانه شوه بیرته ولاړه .

وائی په دغه ځای کښی د قلندر د توقف مده شپږ کاله وه پسله شپږو کالو څخه په ٦٥٠ ه ـ ۱۲٥٢ عیسوی کال کښی وفات او دلی ښخ شو .

د روضی د جوړیدو امر لومړی پلا سلطان فیروزشاه چی د سلطان محمد شاه د هندوستان د باچا ورا زوی کیدی او د محمد شاه تر مرگ وروسته چی په (٧٥٢ه ـ ۱۳٥۱ ع) کال کښی د ټوټی له ښار څخه هندوستان ته راغی کیدی ، و ملک رکن الدین ته چی د ټوټی او سیوستان حاکم ؤ وکړ .

(پاته په ٢٦)

د ریډرز ډایجست نه: د غ، ایوبی ژباړه:

# طلائي ژبي قانون پوه

ښاغلي سرنوشت داسي غوښتي وه چه دخپل عصر فیلسوف، سیاستمدار اوستر قانون پوه (سیسرون) بوخه وخت په روم کي ژوند وکړی او «دسولا»، «پمپئي»، «ژولیس سزار» او (مارك انتوني) په څیر ستر شخصیتو نه چه هر یوه زیات شهرت درلود د روم د سیاست په ډګر کي په هنر نمائي بوخت وو.

د ارغوني د روم د هیواد اساس د عدالت او هوساینې دو پایو نې پر بنسټ ولاړ ؤ خو په پای کي یې د اخلي جګړو او دسیسو له کبله سقوط وکړ او له منځه ولاړ.

د روم په دولت کي ډیر خودمختاره سیاستمداران داغلل اوونډل، او په دغه ترځ کي آزادي خپل ځای ودوود خودمختاري ته و سپاره او سیسرون په ارغوني روم کي د آزادي ودستی او ډیر سخت مدافعه کوونکي ؤ.

دی معتقد ؤ چه د کلمو اغیزې تر دو په څیر دی او دغه ځای وتیسي او که څه هم د زموږی تندی او آتیشنی کلمی تر بوخو موده ...

دبر مختګ او بریالیتوب سبب دی په پای کي تودی خپل کار وکړ او قلیمانو دی دبهوو اچاوه خو دسیسرون دون فکر اغیزه ناکو لیکنو او آتیشینو نطقونو دلو یدیځي نړی په فرهنګ کي ژوره اغیزه وکړه.

او دده آثار چه قول په لاس لیکل شوی وو زیات قدر ئې ومونډ.

د ارغوني روم خلکو په په هره موقع کي چه و لیدل آزادۍ ئې په خطر کي او یدلې ده نو په سیسرون ته ورغلل او دهغه څخه به ئې وغوښتل چه دیوه روحاني ساتندوی په څیر ئې آزادي خوندي کړي.

دفرانسې دلوی انقلاب لارښوونکو

هانو ته د روم د دغه ستر شخصیت سره پر تله کول او یدی عقیده وه چه دغه ستر سړی ؤ چه لومړی ځل ئې

انسان ته حق ورکړ چه دخپلو حقوقو څخه دفاع وکولای شي او قانون، ترقو او قضائی قدرتونو پورته وګڼي او هم دی ؤ چه ځان ئې د آزادۍ د دفاع د پاره دلاسه ورکړ.

دامریکي د آزادۍ لارښوونکو چه په حقیقت کښي ئې هغه هیواد په یوه نوی او بهترین اساس منځ ته راووړ او دسیسرون سیاسي عقاید او افکار ئې دامریکا د آزادۍ په منشور کښي ځای کړل او د انګلستان سیاستمدارانو د دغه ستر نطاق او پوه له آثارو او لیکنو څخه استفاده کړی او هغه دارغوني زماني له ستر و سیاسي او پوهو شخصیتونو څخه ګڼي.

مارکوس سیسرون په یوه داسې ښار کي چه نوم ئې ارپینوم او د روم د جنوب ختیځ په ۶۰ کیلومتری کي دی تر میلاد ۱۰۶ کال دمخه د جنوری په دریمه وزیږیدی

پلار ئې د کالیو په مینځلو او ورینو ټوکرانو په پاکولو اخته ؤ هر کله چه دخپل زوی استعداد او هوښیاري ورڅرګنده شوه، دی او ور ورور ئې روم ته ور وستل څو

چه هلته ددوی د زوزنی او ښوونی په هکله زیاته توجه وشوه او لویې سړی ئې ځني وختي.

ده غوښتل چه د خلکو وکالت او یا

دمنافع پتوب په لاس راوړي خو په هغه وخت کي داسې شغلونه دبې ایانو په انحصار کي وه او ددغه ځوان د پاره چه د غریبی کورنۍ څخه ؤ ددغه کار لاس ته راوړل آسانه کار نه ؤ، خو سیسرون چه یو پوه ځوان ؤ د ورځې (فورم) ته چه په حقیقت کي د روم زړه او سیاستمدارانو د غونډی ځای ؤ حاضر یدی او دجا ریه چاروا و

سیاست په باب ئې په غور غوږ نیولی ؤ.

دغه ځوان چه ډیر ځنګړی، ستر ګی ئې درلودلي او پزه ئې اوږده وه د مجلس ټول جریانات ئې په دقت او ریدل.

تر څه موده وروسته دده د پوهې

شهرت دومره زیات شو چه خلکو د ورځنیو مسایلو په باب دده سره مشوره کوله او دده نظر به ئې غوښتله ·

دعمر په اوه ویشت کلنی کی سیسرون خپله لومړنی د فاع د راسیوس په باب چه د پلار په مرګ تورن و شروع کړه ،

کله چه غوښتل د راسیوس محکوم کړي او محکمی ئې پلاس کی واخلی د روم یو مقتدر سړی و ؛ له دغه کیسه د روم لومړی درجه وکیلانو د ده له بیری د راسیوس د دفاع څخه ډډه وکړه او د سیسرون و چه په میړانه او ځوانمردی ئې د دغه دفاع په غاړه واخیستله او د نطاقی د قدرت په کار اچولو سره ئې په دغه محاکمه کی بریالی شو او خپل موکل ئې بری الذمه کړ او په دغه کار سره دده شهرت په ټول روم کی زیات شو ·
سیسرون د خپلو زده کړو د بشپړ کولو د پاره د روم څخه ووت او د خپل ورور سره یونان او کوچنی آسیا ته ولاړی او هلته ئې د خپلو لویو معلمانو تر نظر لاندی د نطاقی قدرت زیات کړ په دیرش کلنی کی چه د دولتی شغل د حاصلولو او قانونی سنو د خزانه داری د مقام منصب لو د پاره ئې کوشش وکړ او په دغه هڅه بریالی شو او پنځه کاله چه خزانه دار و د سیسلی خلکو دده څخه وغوښتل چه د ظالم حکمران په مقابل کی د دوی دفاع وکړي هغه دا کار ومانه او د قوی مشاهدو او سندونو سره محکمی ته حاضر شو ·

د محکمی غړی قول د روم لوی شتمنو د ان وه ، د محکمی موسم د روبی وار و ډیر خلک د دباندی څخه روم ته راغلی وو او قول خلک د قوم عمارت ته چه محکمه هلته وه حاضر شول چی د یوه ځوان او پوه وکیل دعوا واوری او په دغه محاکمه کی سیسرون د محکمی دغړو په مخ کی د سیسلی د حکمران پر ضد و دریدی او دفاع ئې وکړه چه حکمران د محکمی د حکم تر اوریدلو د محکمی څخه حرکت وکړ او د کښتی په واسطه د روم څخه تښتیدی او پاته قول عمر ئې د تبعید په حال کی تیر کړی او له دغه پیښی وروسته سیسرون د روم د لومړی درجه او ستر وکیل په حیث وپیژندل شو او په هر ځای کی دده د نطاقی او پوهی په باب خبری کیدی ·

دده څخه ۷۸ خطابی په یاد ګار پاته او چاپ شوی دی چه ویونکی د خپل کلام او نطاقی د قدرت څخه باخبره کوی ، خو دعظمت او قدرت په وخت کی سیسرون ته ځینی ورتمات پیښ شول او خپل یو دوست ته ئې ولیکل چه د بد چانس سره مخامخ شوی او زما ژوند ئې خراب کړی

دی غوښتل د دوستانو په ملګری ئې د دغو بدبختیو څخه نجات ومونداو بیرته بل ځل روم ته ولاړ ·

د دغه ستر نطاق څخه ۸۰۰ لیکونه دوستانو او آشنایانو ته د یوه لوی فرهنګی میراث په حیث پاته شوی دی ·

زیاتره دغه لیکونه دده خپل یو دوست اتیکوس ته لیکلی دی او په دغه وخت کی د سزار ژولیوس د حکمرانی دوره شروع شوه او په روم کی ئې لوی قدرت ګاټه او سیسرون د لوی غلیم په حیث ورته معرفی شوا و دده سره ئې په مخالفت پیل وکړ او د دغه مخالفتو نو په نتیجه کی په هغه وخت کی چه دده عمر ۶۲ کالو ته ورسید د خپلو ځو ننو تو دی دوستانو سره د روم څخه د تلو و په نیت د کښتی موندلو په تلاش کی و چه مخالفانو دی تعقیب کړی او سپند تهانو دی ئې په ځنګله کی دی مخامخ کړ ، ده د خپلو ملګرو څخه وغوښتل چه کجاوه ئې پر ځمکه کښیږدی او وروسته ئې خپل سر د کجاوی څخه دباندی را ویوست او د مخالفانو لیس ئې سر له بدن څخه جلا کړ او په دغه ډول د دغه ستر شخصیت ژوند پای ته ورسید (پای) ·

## د فکر پلوشی

د لویو اخلاقو خاوندان د قولنی د روح مشال لری ·
(امرسون)

حقیقی او روښانه انسان ښائی خپل ظاهر او باطن دواړه ښائسته کړی ·
(چخوف)

حسد کونکی ژر مړی ځکه حسد د همیش لپاره ژوندی وی ·
(موسیر)

بد بین سړی هڅکله اختر او خوشی نه لری · (بایکون)

هر کله چی خلک ما ځوروی هغه کوم چی خپل روح دومره اوچت کړی چی د هغو آزار د ما ته راو نه رسیږی ·
(کانټ)

پښتو کوونکی عبدالصمد نصرخواه

# دتاریخ یوه گوښه

دوهمه برخه

# کابل په تیرو تاریخي دورو کي

ځکه له افغانستان څخه چینی ترکمنستان، کشمیر پنجاب او سند ته تر چمنا پوري ونیول شوه. په عصر کښي صنایع پر مخ ولاړه او ډیر ځا بونه ئې تعمیر او جوړ کړل د بودائی دین د ډیر اختیا لپاره ئې کوښښونه کړل چی وائی چې د بامیانو بتان هم دغه پا چا جوړ کړی دی. تر ده وروسته (دوهم کنشکا) د ۱۲۰ څخه تر ۱۵۱ پوري سلطنت وکړ او تر هغه وروسته (اوشکا) د دغه لوی سلطنت واگی په لاس کی واخستی او تر ۱۸۰ عیسوی کال پوري ئې سلطنت وکړ. وروسته واسو دیوا (Wasudewa) پاچا شو څو په ۲۲۶ عیسوی کال کښي دغه لوی هیواد په څو برخو ووېشل شو او ډېره برخه د ساسانیانو تر اداري لاندي شوه صرف د کوشانیانو څخه یوه برخه پاته وه چي تر پنځمي پېړۍ پوري ئې په کابل کی سلطنت کاوه.

## هیاطله:

دهیاطلی قوم اصلاً دتخار دقوم څخه دي د پنځمي پېړۍ په آخر کي ئې د اکسس (آمو) د نا حیې څخه په حملو پیل وکړ او په ۵۰۰ میلادي کال ئې کابل ونیو او خپل فتوحات ئې د (تودهمانا) تر مشرۍ لاندې تر هند پوري ورسول دد ی قوم پای تخت (ساکلا) (سیالکوټ) ؤ او څلور پشت نائب الحکومه گی ئې درلودی کله چې مهر گل (Mehrgal) د تورمانا پر ځای کښېناست نو مقتو حه ځا یونه ټوله ځنی ولاړل پر ځینو ځایو تر کانو او پر ځینو ځایو ساسانیانو (انوشیروان) تصرف وموند او چینا یانو د (اکسس) ناحیې د کافرستان په شمول ونیولی.

## دکوشانیانو دوهمه سلسله او داسلام فتوحات

کله چې دهیاطلی قوم د افغانستان دشمالي برخو څخه بېرته شول نو د کوشانیانو دپاچاهی دوهمه سلسله تاسیس شوه چي په تاریخ کی دغه پاچاهان د کابل شاهانو په نامه یادیږي.

دغو شاهانو تر ۸۸۰ عیسوی او ۲۶۷ هـ کال پوري کابلستان کی سلطنت درلود او دوی زمانه وه چي اعراب و کابل ته داخل شوه.

## دلومړي ځل لپاره دکابل فتح داعرابو له خوا

کله چی د دریم خلیفه حضرت عثمان (رض) دور د شروع شوه نو په ۲۸ سنه کی مسلمانانو د عبدالرحمن (رض) بن سمره بن حبیب قریشی په لارښوونه د غزني له لاري پر کابل حمله وکړه. کوشانی (اعراج) شاه د ښار ه څخه د باندې په میدا نه پیل وکی خو ماته ئې وخوړه او بېرته ښار ته داخل شو عبدالرحمن (رض) ښار محاصره کړ او په پای کی ئې ښار هم ونیو او د اعراج شاه ډیر عسکر ئې ووژل پخپله اعراج شاه هم بندی او دیوه ملیون درهمو په ورکولو سره د خراج په ورکول قبولداره شو کله چې اعراج شاه ئې د عبدالرحمن (رض) وحضور ته وروستی نو دغه په حضور ئې د توحید کلمه وویله او مسلمان شو. پدې توگه ښار ونیول شو او پاچا ئې مسلمان شو نو عبدالرحمن (رض) تمیم (رض) بن قیس او جبیر (رض) ئې دځو نورو اصحابا نو سره د اسلامي فرائضو او آدابو د ښوونې لپاره په کابل کښي پرېښو ل خو وخت وروسته د حضرت عثمان (رض) د شهادت خبر او رسیدی څرنگه چې په دغه کی اعراج شاه هم مړ شوی ؤ

نو څکه چیپال نامی خپل ځان د کابل پاچا وباله او د خراج ورکولو څخه یې سرغړاوه او هغه اصحابان چې د ننني کابل په شهداءِ صالحین کښې اوسیدل ځوله یې دشپې لهخوا په شهادت ورسول کهڅه هم وروسته پر کابل ډیری نوری حملې وشوې خو هغه دونه مهمې نه وې حتی د رتبیل شاه په وخت کښې عرب د ځینو ماتو سره هم مخامخ شوه او د اړو لیکو درهمو په ورکولو سره یې ځانونه خلاص کړل.

## د عربو دوهمه فتح

دوه کاله وروسته یعنې په ۸۱ هـ کال کښې عبدالملک ډیر عسکر و عبدالرحمن بن اشعث په لاله جوړ واه د کابل د نیولو او د رتبیل شاه څخه د انتقام د اخستلو په غرض د اوستل. د رتبیل [۱] یا زنبیل شاه په دغه وخت کښې د ګړو او لښکرو په مرسته د کابل پر شا او خوا ځینګ د یوال داو ګرځاوه او محکم برجونه یې جوړ او تیر کښان یې ورکړل.

د اسلام لښکرو لومړی د سیستان (بست) او کندهار په نیولو پیل وکړ او وروسته غزنی ته ورسیدل بخپله عبدالرحمن د غزنی د نیولو لپاره پاته شو مګر لیث بن قیس بن حضرت عباس (رض) چې د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د اکا لمسی و د کابل د نیولو لپاره وګمارل شو اسلامی لښکرو د رتبیل شاه د فاعی کرښه ماته او دده مزنګه له لاری و کابل ته ننوتل او هلته ډیره سخته جګړه ونښتل په دغه وخت کښې عبدالرحمن هم داورسیدی او ښار ځوله تسلیم شو. بخپله زنبیل شاه د ګردیز و کلاته وتښتید. هغه ځای چې د دغې ورځې جګړې سخته وه نو (لیث) په دوو لاسونو سره د تورو وهلو ته ادامه ورکړه او په پای کښې شهید سو نو دغه محترم د پاغلی عبدالرحمن له خوا په هغه ځای کې چې اوس د رخ په شاه دو شمشیره سره یادیږي، خاوروته وسپارل شو. تر دغې پېښې وروسته جناب عبدالرحمن دهغه دوا نو قول هغه د د مسالو نه چې د وریاب پر دوا ړه وخوا کې آباد و مونږ ول صرف بو د مسال چې د غره په بیخ کې و، او اوس هم سته، پر بشو د او د لومړی ځل لپاره یې د دغه شهید تر څنګ یو مسجد [۲] جوړ کې.

وروسته پاغلی عبدالرحمن (رض) و شهداء صالحین ته ولاړ او هلته یې د حضرت تمیم (رض) او جبیر (رض) جسدونه چې لاتړو خراب شوي پیدا کړل او هغه یې وخاورو ته وسپارل مګر په دغه وخت کې «زنبیل شاه» بیرته کابل د نیولو څرنګه چې دی د «حجاج» سره یو ځای شوی و. نو عبدالرحمن (رض) ئی په ۸۷ هـ سنه کې د حجاج ته ولیږی خو دغه جناب په لار کی وفات وکې.

وروسته د کابل وضعیت تر ډیره کلو بوری په همدې ډول پاته شو خو کله چې اموی هشام په ۱۰۷ هـ کې خلیفه شو نو «آمین د اسد زوی» یې د خراسان د نیولو لپاره وګماره او په نتیجه کې یې غور، غرجستان او کابل ونیول څرنګه چې دغه ځایونه د خلافت له ځای څخه لیری واقع و د دغه په ساتلو کښې یې چه اقدامات نشوای کولای او دغه وختونه وه چې د خلافت د مرکز د امویانو څخه د عباسیانو ته ورسیدله.

کله چې ۱۷۱ هـ کال کی د خلافت چارې د هارون رشید په لاس کې وې نو د خراسان لپاره یې جعفر د محمد زوی وټاکی. جعفر خپل زوی عباس د کابل د نیولو لپاره وګماره او لومړی دده پر ولښکرو سره پر کابل حمله وکړه. کابل یې ونیو او ډیرو ولجو سره بیرته وګرځیده خو ډیر وخت لا نه و تیر سوی چې د کابل شاه بیرته د اطاعت کولو څخه سرغړاوه.

(پای)

---

[۱] دغه دیوال چې تر اوسه بوری یې د کابل پر غرو ونو ښی سته د زنبیل شاه چې ځنی یې (زنبورک) شاه هم بولی جوړ شوی دی خو البته دا دیوال د شاه جهان او نادر افشار په وختونو کې ترمیم شوی دی

[۲] دغه مسجد چې اوس د شاه دو شمشیره په مسجد یادیږي هغه لومړی مسجد دی چې په کابل کښې جوړ شوی دی

# د مریخ ستوری تقریباً (۳۳۵) میلونه کیلو متره مځکی ته نژدې سوی دی

دغه د ستوري مې په باب لنډ معلومات چي ورته نه دی سول هغه پر وکړاموته چي د فضا د نیو و په بر خه کښي وضع سوی دی د ستوري مې پر سطح او د مریخ پر کړی باندی

پو اخي پلی کیدل شا مل نه دی بلکه امریکا د مریخ د تسخیر د لو ورو سته غواړي چي په لومړي قدم کي د مشتري د ستوري او وروسته بیا د نورو ستورو عطارد، زحل، اورانوس بالاخره نپتون او پلوتون په نیو لو هم

پیل وکړي هر څه چي هم دا اوس د هغو کړ و ا پا ر ه

د هوا ی بیړ یو د توغولو مقدمه ایښو دل سوي ده له همدي امله د دوو بیړ یو د کار د جوړ ېدو جریان چي په

۱۹۷۲ کال کي په د امریکا د (ناسا) اداره دی له خوا د مشتري د ستوري لو ر ته و توغول سی، شروع سوی دي او د شمسي نظام د نورو ستورو ته حتی د شمسي نظام و ر د باندی ته د هوائي بیړ یو د توغولو په باب مطالعات

شروع سو ی دی فضا ئي کار پو هان د نکو اند نږی مشهورو او د سمبال سوی رصد خانو په ذریعه ورو سته یو د غو کي به موجود نه کشف کړ ی دی چي د آ سما نی

ستو ر و له خوا د مځکي و کړی ته مخابره کيږي.

پو هان فکر کوي چي ذکر سوی موجونه د ژوندیو جسمو په وسیله چي په ستورو ی په موجو دوی د مځکي د کړي و لو ر ته را ستول کيږي په هر حال د عقل څخه

لیري نه ده چي په ستورو کي ژو ندي موجود ات سته په ستو رو کي د ژوندیو جسمو د موجودیت په باب پو بل دلیل ا لو تونکي پيښي دي چي د نړۍ په ځینو

ځا يو کي په ځینو و ختونو کي لیدل شوي دي هم دا رنګه په د نه ده چي ا وس د مشتري پر سیا ره باندي هم لیدل شوي وي.

مشتري هم د آسماني ستورو له جملې څخه او د شمسي نظام لو یه سیاره ده چي فا صله ئې د لمر څخه (۷۷۷) میلونه کیلو متره او (۱۲) سپوږمۍ لري خپل انتقالي حرکت په (۱۱) کاله او (۳۱۵) ورځو کي سر ته رسوي

څکه چي له پوي خوا مداراو ږد او له بلې خوا ئې سرعت په فضا کي دا نتقالي حر کت په جریان کي د مځکي په نسبت لږ دی د دي ستو ري سرعت په فضا کي په یوه

ثانیه کي (۱۲،۹) کیلو متره دي او همدا ر نګه د کر ې په نسبت د وضعي حر کت د سرعت په خلاف، سرعت ډېر دی او وضعي حر کت ئې په (۹) ساعتو او (۵۰) دقیقو کي پای ته رسیږي. حجم ئې د مځکي د کري په

نسبت د امریکا د متحده ایالاتو د (مونت ویلسن پالیما) او انګلستان د رصد خانو (۱۲۷۰) معلوم کړ ی او جسامت ئې هم د مځکي په نسبت (۳۰۸) دي په داسي حال کښي چي

مخصوص وزن ئې (۷۱٤۰۰) استوائي کیلو متره دی. په هر حال امکان لري د امریکا د متحده ایالاتو د (ناسا)

فضا ئي اداره د مشتر لو ر ته د هغو دوو هوا ئي بیړ یو د توغولو په صورت کښي چي په (۱۹۷۲) کال کښي

سر ته رسیږي د مشتري په باب په دنړ ی د کیهاني پوهانو معلوماتو ته زیات سی.

د هغو هوائي بیړ یو مهم مشکلات چي د ستورو لو ر ته

تو غول کیږي د سو نګ او خوړا کي موادو لږ والې دي څکه چي هوائي بیړ ی به لږ تر لږه (٤) میا شتې په فضا کي تیر وی. همدغه ډ ول نګه اتګ د اورانوس او نپتون ستورو ته د هغه بیړ یو په د ریعه چي سرعت ئې په ساعت کي

(۵۰) زره کیلو متره دي، (۱۱) کا له و خت غوا ړي.

وسترو ته د کیهانوردانو د الوتو سفرونو ترمخه باید کیهانوردان د بې وزنۍ آزموینې تجربې په

فضا کې په زیاتو وخت کې اجرا کړي په هر حال د امریکا د متحده ایالاتو د ناسا) او شوروي اتحاد کیهاني ادارې د دې مشکل د حل

په باب په یو لې اقداماتو پیل کړي دي.

د بېړۍ خوړا کې مواد به په اقومي موادو بدل سي یعنې په کیهاني الوتو سفرونو کې کار پیوندونکي او موظفین په نظر کې اري چې فضائي ذکر سوي

بېړۍ په اقومي قوي قدرت چې د بېړۍ د زیاتېدو له پسې ګرځېدلو سره مرسته کوي سمبال کړي، څرنګه چې همدا اوس ئې په پوره اقدامات تو پیل کړی دی همدغه رنګه ئې د غذائي موادو او د بوډلې والې د مشکل د لیرې کولو په باب هم اقدام کړي دي څو کیهانوردان د اوږدو الوتنو په

وخت کې د غذائي موادو د نشته والي له کبله ضایع نه سي. همدا اوس د کیهانوردانو عادي کېدل په فضا کې د ډېر وخت لپاره او د بې وزنۍ د حالتو په باب ازموینې دوام لري. هغه ازموینې چې د بوډ تنې مشکلات لیري کېدو له پاره

د شوروي اتحاد د (۱۱) سیوز د کیهانوردانو (ګیورګي دوبرو سکي) (ولادیسلاف ولکوف) او

(ویکتور پاسیتایف) په وسیله سرته ورسیدل مهم د ول په وارې که څه هم کیهانوردان د یوه اوږده سفر تر ډا کښته کېدو وروسته د

کپسول څخه مړه ولاس ته راغله خو سربېره پر دې هغه تجربې چې دوي سرته رسولې د نورو کیهاني پوهانو ډېري زیاتې په زړه پورې او ګټوري دي

په نظر کې دي چې په روان کال کې یوه ډله کیهانوردان د فضائي ګرځنده

استیشن سره د څلورو میاشتو څخه زیات کال پورې په فضا کې پاته سي که د دې ازموینې په بریالیتوګه سرته ورسیدلې هیله ده چې په (۱۹۸۲) کال کښې به لمړنی

انسان د مریخ پر کره باندې پلی سي.

په هر حال باید تر هغه کال پورې وګورو چې څه به پیښه سي.

پای

د لامارتین اثر: د نورو ادب:

# ای د ختیځ ګله

ای د ختیځ ګله! اې د ختیځ لوري!

همدا ته ئې چې همیشه له ما نه تپوس کوې چې! (ستا د شعر روح څه شی دی)؟ که چېرې بلبل به خپل اختیار کښې وای نو د اولي ورځې څخه به تا ته د راغلی او ستا په

خوا کښې به ئې د ناز نغمې شروع کړې وای او ستا د ګلدار د ګلونو د پاڼو څخه به ئې د عشق شیره څښلې وای.

ته زما څخه زما د شعر پوښتنه کوې، ته غواړې هغه څه چې ته د هغه ښکار نه دوې پی تا ته ئې تشریح کړم.

آیا کله دې اوریدلي دي چې د ګل

عطر به څېله ګل ته څه راز معلوم وي؟ آیا اوریدلي دي چې نارنج د شکېدلو نه وروسته بیر ته هغه ښاخ کښې شین شي؟ آیا اوریدلي دي چې سپېدې

چاوده د آسمان ستورو ته راز ښکاره کړی.

ای د شرق ښکلې ناوې! دیله کوم چې زما څخه زما د شعر او غزل مطلب پوښتنه، که چېرې ته تل دا اصرار کوې چې زما شعر او غزل و پیژنې نو ته د دې مرمر بڼ حوض په خوا کې او بو کښې خپلې څېرې ته حیرانه شه وګوره. نو پوه به شې چې هیڅ یو ښکلی شعر ستا د ښکلا سره برابري نه شي کولای

کله چې ستا نازک مکان د ګلانو د غوړېدو په وخت کښې په ځنګلو باندې زور اچوي او بیا د دواړو په خپل ښکلي تندي چې په هغه کښې د آسمان د څراغونو رڼا ښېي سپینه

ځلیږي، تکیه کوې نو هغه وخت د شاعرانو په فکر او حتی د شاعرانو په سوو اسویلو کښې د دې نه پاک ښکلي او په زړه پوري بل شی نه شي پیدا کیدلی.

افسوس چې اوس ما د عمر هغه خوږ او په زړه پوري دوران چې په هغه کښې د ژوند د مینې او عشق ګلان نوي غوړېدلي پر انیزې تېر کړی دی او نور په زړه کښې د ګلانو د ستاینې او صفت حس او قوت نه وینم.

اوس زما په اختیار کښې پر ته د چنګ له نغمې بل شی پاتې نه دی.

هو، مګر کله چې زه (۱۶) کلن وم نو هغه وخت که تا هر څو مره شعر او غزل زما څخه غوښتي وای حاضر وم چې د ارمغان او تحفې په ډول مې تا ته وړاندې کړي وای او په مقابل کې مې ستا په ښکلا او تدا مو لاس وهلی وای یا مې د خپل شعر او غزل په بیه کښې ستا د مستو سترګو د مینې او د سوغات په توګه منلی وای.

د کندهار د لیکوالو د پېژندنې په لړ کې:

# ښاغلی عبدالصمد نصرخواه

ښاغلی عبدالصمد نصرخواه په ۱۳۰۳ شمسي کال کې په کندهار کې زېږېدلی دی تر لومړنی دورې

وروسته په ۱۳۱۷ کال کښې د کندهار د مستعجلې ته چې د لومړي ځل لپاره تاسیس شوې وه داخل شو او په ۱۳۱۸ کال کې د دغه ځای

فارغ او د ښوونکي په حیث مقرر شو خو د دغه کال په آخر کښې د پوهنې وزارت له خوا د ښوونکي په توګه

کابل ته وغوښتل شو او هلته ئې د خپلې وظیفې نه علاوه د ښځو پښتو کورسونو وظیفه هم پر غاړه درلوده

یو کال وروسته کله چې په کابل کښې د شپې دارالمعلمین جوړ شو نو موږ ئې د شپې له خوا د دغه مسلکي دارالمعلمین په ویلو پیل وکړ

او په ۱۳۲۴ کال کښې د دغه ځای څخه فارغ او په اعلی درجه ئې شهادتنامه په لاس راوسته چې تر اوسه هم د هغه مسلکي معاش اخلي

وروسته ئې د دغه ځای دوه کاله نور هم د ساینس او ریاضي په څانګه کښې لوست وکړ.

د ۱۳۲۶ کال په سر کښې د کابل څخه د کندهار ته تبدیل شو او د مشرقي په لیسه کې د معلم په حیث مقرر شو خو تر دوو کالو

وروسته د ښځو معادیر و له امله د معلمۍ وظیفه ور څخه پاتې شوه او دېوه وقفه منع ته د داخله چې دې وقفې تر ۱۳۴۰ کال پورې دوام وکې خو د دغه کال د ثور په لومړۍ ورځ ئې بېرته په کار پیل وکې

او د پوهنې وزارت له خوا د کندهار د موزیم د مامور په حیث مقرر شو او تر اوسه پورې د دغه ماموریت د آمر په حیث کار کوي.

نصرخواه د پښتو ژبې اعلی شهادتنامه هم په لاس کې لري او په تېرو کلونو کښې



ښاغلی نصرخواه

ئې د اصلي وظیفې نه علاوه د کورسو د ښوونکي وظیفه هم اجراء کوله او په دغه

برخه کښې ښه او ښه د سابقه لري.

نصرخواه د هیواد د ځېنو نورو د

تېرو کلونو راهسې په کابل او کندهار کښې قلمي مرستې کړېدي چې هغه ځېنې

شعرونه او ترجمې دي او موږ تر اوسه هم د کندهار د طلوع افغان د ورځپاڼې سره خپلې قلمي مرستې جاري ساتلي دي.

د لامارتین اثر:

## بورا

ای ښکلې بورا چې د بسرلی
سره نړۍ ته د راځې، سور د ګل پېژنې
کېږي او د ژوندانه سره پیلنه کوي؛
دو ځمې په وږمو سره د ښکلا په

آسمان کښې الوزې او د نوی
غوړېدلي ګلانو په غېږ کې د بېږنی او د
ګلانو په عطر او د لمر په وړانګو

او پېږي زرین وزر دو ته پر له وهي
او لکه آتیشن آه د آسمانو ته پورته
کېږي.

ای بورا، ته ز ما طالع ته پاته
کېږي او هغې هیلې ته ورته یې چې
هیڅ آرام ځای او قرار لري. ته
چې هر ځای بې خپل درا کښته کېږو

ځای ښایسته کوي او په ښېرنا آرامي
د آسمانو بر لورد ورمی چې
ګوندي خپله ورک هلته ومومي.

# د لویانو خبرې

ښه نوم د جسم سنګار او د روح
قوت دی. (شکسپیر)

د مینتا چا نو حاجت سبا ته مه
پرېږدی ته ځه پوهېږی چې سبا به
څه پېښه‌سی.

(افلاطون)

د اخلاقو څاوندان د ملت د روح
ګڼل کېږي. (امرسون)

په نړۍ کې هر هغه ایجادات چې
کېږي په هغو کې الهام د باني
د انسان لاره ښوونه کوي.

(فرانس بیکن)

(د۱۳۵ مخ پاته)

# د سرطان خطرناکه ناروغی...

کولای شو چې په بدن کښې د (اینترفرون) د مادې مقدار ډېر کړو او په دې توګه هیڅ یو ویروس نشي کولای بدن ته لار پیدا او داخل شي، او دا به کافي وي چې په ډېر لږ مقدار د (اینترفرون) څخه چوړ شوي یوه ګولۍ استعمال او وخوړل شي او په دې توګه خپل بدن د ویروسونو د خطرناکو ناروغیو په مقابل کښې د دفاع لپاره تیار کړي.

خو بېرته دوست کښې د دې دا موضوع هم هر ګند شو چې دغه هیله او امید په ځینو بوی او د بېرته ...

...او په دې څکه د (اینترفرون) مادې د تهیه کولو په برخه کښې ډیو هانو کوښښو نه ځنګه چې ښایسته نتیجې ته و نه رسیدل.

په ظاهري توګه دغه کار ډېر هله ترهغه سخت ښکاري چې په ابتدا کښې فکر کېدی.

د دغې مادې څخه هغه اندازه چې د انسان د بدن لپاره لازمه ګڼل شوې وه، دایم ګران او په حدود کې د مخو دایم ګران «اینترفرون» تولیدول یخپله یوه ډېره پیچلې معماوه. د حیواناتو له انساجو څخه دغې مادې ترلاسه کول کومه ګټه نه درلوده ځکه کومه ماده چې د حیواناتو له انساجو پلاس

راتلل د انسان په بدن کښې ئې څه نتیجه نه درلوده حتی هغه ماده چې د بیزو په بدن کښې چې د جسمي جوړښت له مخې د انسان سره زیات ورته والی لري تولید کېدل، د انسان پر بدن ئې اغیزه نه کول.

که د بیولوژي خوا د دې مادې تهیه کول مشکلات لري د بلې خوا د انسان په بدن کښې د هغه فعالیت هم ممکن نه ؤ ځکه هغه اندازه «اینترفرون» چې په مصنوعي توګه ئې هر وار د انسان په بدن کښې تولیدول ترځلو ډو ګرامو اضافه نه وه او د یوه انسان د بدن څخه د دې مادې برابرول هغه هم په دغه لږ مقدار او بیا بل انسان ته د هغه تلقیح کول یو ناممکن کار ؤ.

تر ډېره وخته یو هان د دغه لوی مشکل سره مخامخ وه خو بالاخره د هغه حل لاره له داسې لوري پیدا شوه چې هیڅا د هغه هیله نه لرل هغه دا چې یو امریکائي

یوه چې «شاب» نومیدی جنوبي امریکې ته د مسافرت په لاره کښې متوجه شو چې یو ډول نباتي شکله میکروب د دېد بکس

په جیب کې د ده د عیر مني عکس خراب کړی دی.

دغه مخصوص میکروب د نوموړي امریکائي پوه پاملرنه وراړوله هغه ئې د عکس له مخ او شاه خوا څخه دا قول او د میکروسکوب لاندې ئې د هغه د مختصاتو په څېړنه او پلټنه شروع وکړه او په ډېر حیرانتیا

د دغه میکروب د عجب خاصیت او استعداد سره مخامخ شو او هغه دا چې نوموړی میکروب د ویروسونو په مقابل کښې فعال او د مخنیوونکی ئې

او د نوموړي څخه ئې مختنیوی کاوه

د ده دغه کشف د طب په نړۍ کې د دنیا ئې پاملرنې ځانګړې واړوله او په دې برخه کښې نورو پوهانو د دغه امریکائي پوه ملګري ته مخ وکړه... او بالاخره څرګند شوه چې یخپله دغه میکروب ویروسونه

له منځه نه وړي بلکه میکروب د بدن سلولونه او انساج د داسې مادې په تولید کولو سره تحریک کړي.

چې هغه یخپله د (اینترفرون) ماده بلل کېږي خو ددوستانه ترهغه چې په دې برخه کښې نوې ژورې پلټنې سرته و نه رسیدې یو بل حقیقت څرګند

شو هغه دا چې یوه خاصه ماده په دغه میکروب کښې وجود لري چې (رنس) نومیږي (رنس) د بدن

انساج د اینترفرون مادې د زیات مقدار په تولید کولو سره تحریکوي.

او په دې توګه معما حل او لوی

مشکل د ویروسونو سره د مبارزې په لاره کې د بشر څخه لیرې کړه شو.

ځکه د رنس د مادې تولید په هغه مقدار امکان درلودی او د انسان

(۲۴ مخ

په بدن کښې ددغې مادې په تزریق سرطانی نساج د (اینټر فرون) مادې په تولید تحریک کېږي. او د اینټر فرون د مادې پر ترشح سربېره ټول ناروغیو ډېشی پرې کېږي. دغه وخت غځه تر اوسه په او و

ازمو ینځیو کښې یو په بل پسې زیاتې تجربې شروع شوې دي په زرګونو حیوانان د تجربې لاندې نیول شوي دي او بېل بېل ویروسونو هغو

ته تلقیح کوی او د (رنس) په وسیله دهغو سره مبارزه کوي ددغو ازمو ینڅو غځه ئې زیاتې بریالی وی او

هغه پرمختګ چې بشر د ویروسي ناروغیو د مخنیوي او درمل په برخه کښې کړی دی په حقیقت کښې په

تاریخ کښې بې ساری دی.

د امریکا د مهمې ازمو ینځې «وست پو ئنت» د خبر سره سم دا کنتر «موریس هیلمان» د غو موږ کانو

ته د رنس ماده تلقیح کړه او وروسته ئې دغینو بدن ته دفلج د ناروغی ویروس داخل کړ په نتیجه کښې

هر ګنده شوه چې دنو موړی دا کنتر د کار نتیجه فوق العاده په زړه پوری وه یعنې دا چې په سل کې ۷۳ موږ کانو

د ناروغی په مقابل کې مقاومت وکړ او جوړ پاتې شول په داسې حال کښې چې د «رنس» د مادې د په تزریق په صورت کې نورو موږ کان

حتمي مړه کیدل. همدارنګه دا یئې دویروسي ناروغیو په مقابل کښې موږ کان د «رنس» مادې په تزریق

سره په سل کښې (۹۰) مصؤنیت پیدا

کړی دی.

د امریکا د (مری لنډ) په ازمو ینځې کښې هم دوو تنو دا کترانو چې «دا کتر بارون» او «دا کتر جان بارک» په نامه

یادېږی دغه ازمو ینه په خوړا نوسو یانو سرته رسولی ده او تر لهسویانو و کولای سوای چې سل په سل کښې د ویروسونو په

مقابل کښې مقاومت وکړی او ناروغه نه شی.

همدارنګه د کالیفر نیا د (استانفورډ) د پوهنتون پروفیسر (مریګان) دا

کشف کړه چې اوس کولای شو په خپلو ازمو ینڅو یو کښې د «رنس» مادې ته ورته ماده جوړه کړو او باید تو ګه هم د ویروسونو په مقابل کښې د مصؤ نیت پیدا

کیدل امکان لری او هم دا ازمو ینڅیو کوچنی حیوانات ددې مادې تر تزریق وروسته سم دستي جوړ ېږي.

خو تر ټولو په زړه پوری لاداده چې د «رنس» دمادې په تزریق کولو سره کولای شو دسرطان خطرنا کې ناروغی چې دهغو غځه غلا صون د بشر ستره هیله

ده معالجه کړو او باید تو که دطب دعلم دغه لوی مشکل چې تر اوسه لا ینحله پاته ؤ، له منځه ځځه ځي.

## دسرطان د ناروغی درمل:

د لومړی ځل له پاره په ۱۹۱۰ کال کښې یو امریکائی پوه (پیتون روس) دغې نتیجې ته ورسیدی چې دهغو کوچنی ځوکانو په بدن کښې ویروسونه، سرطان تولیدوي او د هغه غځه وروسته نو موړی پوه ته دا فکر پیدا شو چې ښا یې په انسان کښې هم دسرطان د ناروغی دا پیدا کیدو عامل یو ډول ویروس وي. او همدارنګه بو شمیر پوهانو په قطعي تو که دسرطان عامل یو ډول ویروس و باله او دا موضوع

ئې په اثبات ورسوله، سرطان پېژندونکې نا متو دا کتر «فرانک دوش» په دې برخه کښې

داسې عقیده لری:

«تر اوسه موږ په دې فکر کښې وو چې آیا دسرطان عامل ویروس دی که نه؟ خو اوس چې په سرطان

کښې د ویروس وجود ه رګند شو موږ ددې کشف په اړه کښې یو چې څو ډوله ویروسونه دسرطان په

دا پیدا کولو کښې دول لری»

په ظاهره باید دسرطان عامل ویروسونه زیات وی خو په حیوا ناتو کښې ئې تراوسه (۷۰) ډوله د

سرطان عامل ویروسونه کشف کړی دي نو په انسان کې به هم تر دغه فیصدی لږ نه وی.

همدارنګه اوس د (اینټر فرو) وجود دزیاتې امیدوارۍ زیری دی، څکه لګه ځنګه چې ثابته شوې ده که دسرطان د ناروغی د دا پیدا کیدو عامل

ویروسونه وی نو بیا کولای شو هر ډول سرطان لکه نوری ناروغی معالجه کړو. او اصولا هر انسان کولای شي

د (اینټر فرون) دمادې په علمی مصرف کولو سره خپل بدن دسرطان په مقابل کښې مصؤن او خوندی وساتي. پوهانو تر اوسه په حیوانانو

کې د سرطان لږ بېلو بېلو ناروغیو ته د «اینټر فرون» ماده تزریق کړی او هر وار ددغې مادې په تزریق کولو سره دسرطان خطر ناکې غدې یو ؟ ډول له منځه تللي او معالجه شوی دی.

د ډاکټر «هیلټون لوي» او د ډاکټر «الن دابسون» د څېړنو له مخې د سرطان په ډول ناروغۍ اخته کړه خوګوشتۍ او هڅو وروسته ئې خپله روغتیا

بیرته ترلاسه کړه. څرګنده موندنه کاڼو ته ئې د «اینترفرون» ماده تزریق کړه او په ډېره حیرانتیا ئې ولیدل چې سرطاني غدې د څو ساعتو په موده کښې له منځه ولاړې او ناپودې شوې. او ټوله هغه موندنه کان چې د مخه د

سرطان په ناروغیو اخته شوي وه تر یوې هفتې وروسته ئې بیرته خپله پخواني سلامتي ترلاس کړه او حتی د وینو د سرطان په برخه کښې هم «اینترفرون» مادې خپله اغېزه ښودلې ده.

په فرانسه کښې ډاکټر «ژان ګرسه» هم په دغه ډول ازموینه لاس پورې کړ او «اینترفرون» ئې هغو موږکانو ته چې د وینو په سرطان اخته وه تزریق کړه او وروسته موږکانو ورو ورو بیرته خپل لومړني حالت ته پیدا

کړ او ناروغي ئې په تدریج سره له منځه ولاړه. دغه بریالیو ازموینو پوهانو ته دا امید پیدا کړ چې د لومړي ځل له پاره پر انسان هم دغه ازموینه سرته ورسوي.

دغو انکشافاتو د پوهنتون د ستر ګو د طبابت برخې په پوهانو کښې پروفیسر «دوډن» هغو ناروغانو ته چې د سترګو په ویروسي ناروغۍ اخته وه د «رنس» ماده

تزریق کړه او ناروغان په ډېره چټکۍ په لږ وخت کښې جوړ شوه.

همدارنګه په امریکا کښې پوهانو دله ازموینه سرته ورسوله هغه دا چې څلورو تنو د سرطان د ناروغۍ له کبله

د مرګ سرحد ته رسېدلي وه، هغو ته ئې په داوطلبانه توګه د ډاکټرانو په اختیار کښې ورکړل څو د تلقیح د ازموینې لاندې ونیول شي. د هغو څلورو تنو ناروغانو ته د (رنس) ماده په بېل بېل مقدار ورکړل شوه دپاره چې دا تشخیص کړي چې څومره مقدار اغېزمنا سبه دي، تزریق کړه شوه.

د بدن د هر کیلو وزن په مقابل کښې ئې مقدار (دوه میکرو ګرامه) او ډېر ئې (۲۲ میکرو ګرامه) و.

په هر حال پوهان په ډېره چټکتیا د ناروغیو د درملو

لارو چارو د پلټنې ولو په لاره کښې په خپلو څېړنو او ازموینو بوخت دي. د دغو ازموینو څخه هدف دا دی چې کارو داسې حد ته ورسوي چې د یوې ګولۍ په استعمال

سره هر څوک څه د ګولۍ په ډېره بې خطره توګه ناروغیو حتی سرطان په مقابل کښې مصؤنیت پیدا کړي. او که څوک چې په یوه ناروغۍ اخته شي د یوې ګولۍ په خوړلو سره بیرته په ډېره چټکۍ سره معالجه شي. اوس د نړۍ د دوا جوړولو او کیمیاوي لوبو لوبو فابریکو د پاره هم اوس په میلیونو ډالره اعتبار د دغو اکتشافاتو له پاره تخصیص شوي دي او ټوله دغه کارخانې په دې هڅه کښې دي چې هره یوه تر نورو د مخه پدې بریالۍ شي چې دغه ډول ګولۍ جوړه کړي او د دغې لارې څخه هم خپل حیثیت لوړ او هم په میلیاردونو روپۍ په لاس راوړي.

د غه هدف ته د رسېدو په لاره کښې پوهانو څو مرحلې طی کړي دي.

لومړۍ مرحله د «رنس» څخه د کپسول او ګولیو جوړول دي چې هر څوک څه د ګولۍ د خوړلو ناروغیو لکه (ګریپ) او داسې نورو د مخنیوي د پاره وخوري.

(پاته په ۲۹ مخ کې)

د ۱۶ مخ پاته

## حضرت عثمان ...

په ۹۹۳ هـ کال کښې نوموړی د روضه په واد میرزا جاني بیګ د ټټې حاکم او بیا د ده زوی میرزا غازي بیګ ترخان د (۱۰۰۹–۱۰۲۱) هجري کال په منځ کښې ترمیم او پاته کار ونه ئې ور بشپړ کړه.

په ۱۰۳۶ هـ کال کښې نواب دینداد خان د شاه جهان له طرفه څخه مامور شو چه په سیوڼ کښې د قلندر باچا د روضې کاشي کاري او فرش وکړي.

**د قلندر د شعر نمونه:**

زعشق دوست هرساعت درون نار می رقصم
ګهی بر خاک می غلطم ګهی بر خار می رقصم
شدم بدنام از عشقت بیا ای یار من اکنون
نمی ترسم ز رسوائی بهر بازار می رقصم
بیا ای مطرب و ساقی سماع و ذوق را داده
که من از شادی وصلش قلندر وار می رقصم
منم عثمان (مېمندی) که یار خواجه منصورم
ملامت میکند خلقی که من بر دار می رقصم

(۳۶ مخ)

پښتو کو نکي طالب:

# محمدعلي کلی به سږ کال بیا د فرایزر سره لوبه وکړي

دی وايي:

## داپلاجو فرایزر له پښو اچوم که مات سم دلاسو رګونه پرې کوم

کلې پاخه عمر کښې چې د ډرلوونکي د قوي ارادې، قوي مغز او قوي مټانو دی، د نړۍ یو زیات شمیر خلک د هغه د لوبو او مسابقو سره نسبت د بل هر بوکسر ته زیاته علاقه لري، د مثال په توګه کله چې د «بریان لندن» ۳۲ کلن انګلیسي بوکسر سره مسابقه وکړه او هغه یې په اوه دقیقو او شلو ثانیو کې مات کړ، پنځوس میلونو کسانو له نږدې یاد تلویزیون له مخې د هغه د دې مسابقې ننداره وکړه. د دې د پاره چې امریکایان د کلې او بریان د مسابقې څخه محروم او بې برخې پاتې نشي، مصنوعي سپوږمۍ یې د هغې د مدارته د نو غول.

کلې بو دوړ اند یشه انسان او د خاص ذکاوت څښتن دی. هر وخت چې دی پر خپل حریف باندې بري مومي دمخه لا پیشبیني کوي.

اوس د محمد علي طرفداران او هغه کسان چې د ده د مسابقو سره علاقه چېې او دي د اوي کاسیوس، د ددېدلي زمري او نه ماتیدونکي قهرمان په نامه بولي ډېر زیات دی.

کلې کله چې د رینګ ته ننوځي او په مسابقه پیل کوي پر خپل حریف نارې وهي او ورته د ډېرې. په دلاوړي او بیله دې چې د مغلوب بیت او ماتې احساس وکړي لوبه کوي او ورته په ځیره بوډي دقیقه او اوږد ښتنا که مبارزه. کوي چې ننداره کوونکي تحسین او آفرین ورباندې ووايي.

کاسیوس کلې په ۱۹۴۲ کال کې دنیا ته راغلی او د ۱۹۶۰ کال څخه یې د بوکسینګ په لوبو پیل کړی دی. د ده عمر ۲۹ کاله، وزن ۲۱۵ پونډه او قد یې ۶ فټه او دوې انچه دی. ده پخپله لومړنی لوبه کې چې د روم په المپیک کې وکړه، د سرو زرو مډال یې وګټو.

کلې تر رینګ د باندې یو مهربان انسان دی. دی یو پاک بیګناه، متواضع شخص د قوي روح او قوي زړه څښتن او د تور د پوستو مسلمانانو د کمیټې غړی دی.

محمد علي وايي ما د ویتنام تر جنګ د زندان څکه خوښ کړ چې سیاستمدارانو شاعرانو او پوهانو ټولو جنګ غندلی دی او زه جنګ هغه وخت غندم چې له دې امله د ویتنام د جنګ سره سخت مخالفت څرګند کړ.

د کلې آرامه او د میني که څېره د مسابقې په وخت کې غضبناکه او ددېدلي بڼه غوره کې او پخپل حریف باندې نارې وهي چې وزه قهرمان یم او باید قهرمان پاته شم» په دې وخت کې د بوکسینګ او پیاوړي زمري غوندې هغه د خپل قوي ضربو تر فشار لاندې راولي پدې توګه بري ددې په برخه شي.

د کلې د قوي مټانو په مقابل کې تر اوسه هیڅ قهرمان د مقاومت تاب نه دی راوړی بیله فریزر څخه. له دې امله پدې وروستیو کې دې سخت بوخت دی چې پخپل قول تو ان قهرماني ترلاسه کړي. ده په دې باره کې په یو مرکه کې خبریالانو ته وویل: زه غواړم د ژوند تر پایه د قهرماني توم د ځان سره وساتم.

او په راتلونکي وخت کې هم د پخوا په شان د هر بیانو دنی او سختې ضربې په خوشحالي ومنم او په عوض کې هغوی ته داسې سختې ضربې ورکړم چې ژوند دې ترې د خطر سره مخامخ شي. زه به د «جمي آلیس» سره د بو ستون به ښار کې مسابقه وکړم خو «فرایزر» به هیڅکله

(۲۷مخ)

هېر نه کړم . که څه هم هغه
نه غوښتل چې بیا د مسابقې د ډګر
ته حاضر شي . خو هغه نشي کولای
چې حاضر نشي ځکه د قهرمانۍ
موضوع په ما پوری تړلې ده . او که
داوار بری تر لاسه نکړم نو د لاسه
د ګټو نه بری کوم او له ژوندنه
لاس مینځم .

مګر نه د اوار ، زه بریالی
کېږم او هغه د پښوا چوم .

زه بايد په یو هیدالی یم چې ولی
مې د (جو) له لاسه ماته وخوړل
او هغه وخت به د هغه علت تاسې
ته ووایم چې (جو فرایزر) نه یوازې

د مسابقې له میدانه څخه ،
بلکه د نړۍ څخه په د اسې ماته
ووتې چې د بیا د هغه مثال تر لاسه
نه وی لیدلی .

کلې په نظر کی لری چې د
(فرایزر) د ما تولو وروسته
دبو کسر د ینګ پریږدي او په

تجارت اخته سي . ځینې بدی فکر دی
چې کلې د فرایزر تر مسابقې
وروسته ښایی د سینما نړۍ ته
ورسي او لکه هر نګه چې خلک
د ده د بو کسنګ تو د هر کلی کوی
ښای د ده د فلمو نو هم په هر کلی
وسي .

## د کلي دوستان :

کلې په یوه سفر کی چې
د مسابقې په هکله یې کړی ؤ
ویلی وه «زه بو د اسې قهرمان یم
چې ډېری مسابقې مې دخپل ځیات
قدرت او کفایت په واسطه وړي دي

پرما خپل دوستان او ملګری ډېر ګران
دی او هیله لرم چې زما د هری مسابقې
د لیدو د پاره د زما دوستان
حاضر وي .»

په هغه مسابقه کی هم دی پوره بریالی
سو او د ده د دوستانو د مسابقې له شروع څخه
د ده د بری غوښتنه کول .

د کلې دوستان به پر مسابقه کی ،
لکه دوی میاشتې د مخه چې ئی د
(جری کیوری) سره مسابقه کړې وه ،
په خوشحالۍ او ډېر لېونو له چکلو چامو

سره حاضر سوی وه او نارې یې وهلې
چې مسابقه د کاسیوس کلې په ګټه
پای ته ورسیږي .

کلې ژاړه ؤ چې پنځمه مسابقه کی
په دریم (رونډ) به (بونا وینا) مات کړي .
خو سره د هر څو نه د رنډو او سخت وضر بو
یې ونکړای سوای چې تر پنځلسم رونډ

پوری خپل حریف مات کړي .

په پنځلسم رونډ کی (بونا وینا) له
پښو ولو پدی او وې نکړ ای سو ای

چې نور د مقاومت وکړي . تردغه بری
وروسته جو فرایزر د ده ته د مسابقې چلنج
ورکړ .

محمد علی د هغو پښکلو نجونو په باب
چې تل د ده د مسابقې ننداره کوي داسې
وایی :

«زه ښایسته او ښکلی ښځو ګیاني
ډېری وینم چې په بازارونو او مسابقو
په زیات شوق او مینه زما سیل کوي خو
زه د هغو په باره کی هیڅ فکر نه کوم
په تیره بیا د مسابقې په وخت کی .»

کلې تل د مسابقو او تمرینو وروسته
د هغه د دوستانو په واسطه چاپی کېږي .

دی د چکرو هلو ځکا د
او طبیبی عکسو او منظر و څخه
ځیات خوند اخلي او د خوب
او استراحت طرفدار دی

## بوسترماتیش د بو کس نامتو قهرمان هم د کلی په مقابل کی ماتې وخوړه

محمد علی کلې په هوستون
کې د بو کسنګ په دو ستی
مسابقه کی د کو لای سو ای چې د
مسابقې په آخر پنځو شپږو کی

(بوستر ماتیش) ته ماتې ورکړي .
ده د دې مسابقې په باب اخبارونو ته لاف
ووهل چې زه د خپلې مسابقې څخه

راضي نه یم ، ځکه ما باید په لمړي یو
شپږو کی ماتیش ته ماتې ورکړي
وای . او د دغه دلیل چې ولې مې
هغه ته د مسابقې په لمړي یو رونډونو کی

ماته ور نکړه دا دی چې ما پوره مشق
او تمرین نه ؤ کړی او تازه د افریقا
څخه راغلی وم چې د تمرین د پاره مې

فقط ۱۲ ورځې وخت درلود .

محمد علی و ویل «ما نه غوښتل
چې حریف سخت زخمی کړم ،
ماتیش د مسابقې په سر کی لا په

دفاعی مشکلاتو اخته ؤ » کلې چې
لمړی وار نه کولای سوای خپل
ښتلی حریف د پښو د اچوی ؛

وروسته ئی در کټ ګذاره چې
د پر ډېرې ګذارونه وار دوار دسیدلی
دی . د ده دغه ګذارونو ماتیش په
وحشت کی واچاوه . ماتیش چې

تر اوسه د بل داسې چالاک حریف
یا ته په ۲۹ مخ کی

د(۲۶ مخ پاته)

# د سرطان خطرناکه ناروغی...

څو به ناروغی اخته نه شي.

دوهمه مرحله د(ذنس) څخه د هغه جوړول دي چې که ئې څوک هر وخت یو ځلې وخوري د ټولو ویروسي ناروغیو د مبتلا کیدو څخه به نجات پیدا کړي

او په حقیقت کښې به خپل ځان کې مصؤنیت منځ ته راوړي.

دریمه مرحله د هغو ګولیو او کپسول جوړول دي کوم چې هغه تر یو ست لاندې مثلا په یقل کې ایښې دي او د هغه کپسو له یو جدار اري چې پخپله په ټا کلو فاصلو د(اینترفرون) د مادې څخه لې مقدار د انسان بدن ته جذ بیږي او د ویروسي ناروغیو په مقابل کښې مصؤنیت منځ ته راوړي. خو تر اسوا و باشلو کلو نو وروسته چې کپسول خالي شي بیا یې دوهم ځل له پاره

هغه بیاد یوه بل کپسو له په وسیله چې د نوموړي مادې څخه ډک وي د هغه پر ځای په کارولو بیږي چې په دې توګه د انسان بدن ټول عمر پخپله د ټولو نار وغیو په مقابل کښې مصؤنیت پیدا کوي.

هغه څوک چې د غه ډول کپسو ل تر خپل پوست لاندې ولري د ټولو ناروغیو د اخته کیدو څخه به ئې فکر آرام وي.

او هیڅ وخت به په ګر یپ، زکام او نورو او یوا و کوچنیو ناروغیو اخته نه شي او بیا ئې چې ګرسره سرطان هم و نه وینې.

پای

---

د(۲۸ مخ پاته)

## محمدعلي کلي به سږ کال...

سره نه ؤ مخامخ سوې وې نکړای سرای چې د هغه په مقابل کې مقاومت وکړي.

د محمدعلي او ماتیش دلو یو عایدات(۲۵ ۰۰۰) ډالرو ته ورسیدل چې له هغه څخه (۳۰۰۰۰۰) ډالره محمد علی او (۶۰۰۰۰) ډالره ماتیش او باته برخه وتنظیمو ونکو ته ورسیدل.

کلي ته څو اديي چې خپل حریفان زخمي کړي خو بوازي د انګلستان د بوکس قهرمان (کوپر) په ۱۹۶۶ کال کې د ده سره په لو به کې پر ستر که ټپي شو. له دې امله کلې وایی (نو د تولازمه نه ده چې د حریفانو سره د پخوا په شان چال چلند وکړم.)

ټا کل سوی بد محمد علي کلي تر یوې مسا بقې وروسته په کال بیاد بوکس د جهاني قهرمان جو فرایزر سره مسا بقه وکړي فرایزر د مخه څرګند کړې وه چې به (۱۹۷۳) کال کې به د کلي سره مسا بقه وکړي خو ده ویلي وه چې اوس فکر نه کوم چې د کلي سره مسابقه وکړم.

فرایزر څو اړ ی چې د(تری دینالیس) د تکراس د قهرمان سره تر مسا بقې وروسته د کلي سره لو به وکړي او هیله لري چې د لر یې به لومړي یو د نهه و کې محمد علي د رینګ څخه وباسي او د قهرماني پر سر شخړه پای ته ورسوي.

پای

---

## د ژوندانه لار

رشتیا امانت دی او دروغ خیانت.

ډیر هو ښیار هغه څوک دی چې د خلکو عذرونه منې

د انسان لوی عیب د ادی چې په نورو کې کوم عیب وویني خو په ده کې هم وي او هغه اصلاح نه کړي.

د بې عقل له دوستي او ګټې څخه ځان وساتی د ا ځکه هغه غواړي چې دوستي د سره وکړي او ګټه در ورسوي خو بیا ئې هغه ستاسو په ګټه نه وي.

څوک چې په قسم و عده کوي د اعتماد وړ نه دی.

بهترین قوت د سړي عقل دي خو په دې شرط چې علم او تربیه ور سره ملګري وي.

په خپلو افکارو او اعمالو کې شریف اوسې.

